# د ربنتين او زيار په گرامرونو کې د نوم پرتليزه څېړنه

ليکوال : شاه محمود کهوال

١٣٩٥ ل

## سريزه

پښتو ژبه ، د ګرامري او ژبنيو څېړنو له پلوه ډېره بډايه او بشپړه نه ده ، د ژبنيو څېړنو مخينه يې هم ډېره لرغونې او زړه نه ده . که څه هم په دې برخه کې د څېړنو لومړنی څرک هم له همدې سيمې او له يوه افغانه (پيرمحمد کاکړ) راپيلېږي ، خو وروسته بهرنيانو هم په دې لړ کې خپله ونډه اخيستې ده.

ژبه يوه ټولنيزه ښکارنده ده ، په دې اړه څېړنې هم همدا رنګ او ځانګړنه لري . ژبه د نورو ټولنيزو ښکارندو په څېر بدلون مومي ، له دې امله ، ژبنی څېړنې نه ودرېږي او اوږدېږي . بلخوا د ژبنيو څېړنو لارې چارې هم وخت ناوخت نوې کېږي ، نوې ښکارندې د زړو ځای نيسي .

له نېکه مرغه ، د پښتو ژبې ګرامري څېړنې ، چې په دې برخه کې شوي ، د دې ورتيا لري چې پښتو ژبه پرې د جوړښت له پلوه تر ډېره وپېژندل شي او تر يوه بريده يې ژبه تشريح کړې ده .

د دې څېړنيزو آثارو په لړ کې ، دوه يې ډېر مهم دي ، چې يو د اروابناد استاد رښتين (پښتو ګرامر) دی ، چې لسيزې وړاندې درانه استاد په دري ژبه ليکلی او بيا وروسته پښتو ته ژباړل شوی دی. بل يې د قدرمن استاد زيار ( پښتو پښويه ) ده چې دا بيا تر (پښتو ګرامر) ډېر وروسته ليکل شوی ، له دې امله يې څېړنه بېلابېل توپيرونه لري.

اروابناد استاد رښتين ، په پښتو ژبه د يوه مين ژبپوه په توګه ، د خپل وخت د دوديزو ژبنيو څېړنيزو ميتودونو په اډانه کې ( پښتو ګرامر ) او نور ژبني څېړنيز آثار ليکلي ؛ هغه ميتودونه چې په هيواد ، سيمه او نړدې ټوله نړۍ کې دود وو ، چې مخينه يې تر لرغوني يونانه رسېږي. د استاد ياد ګرامر او نور ژبني آثار ، ټول داسې دي ، چې تر ډېره يې د پښتو ژبې غوره سپړنه کړې ده او تر اوسه پورې يې خپل ارزښت ساتلی او ډېر مينوال لري .

د اروابناد استاد رښتين له ګرامر وروسته ( پښتو پښويه ) داسې آثر دی ، چې د ژبڅېړنې د نويو ميتودونو په رڼا کې ليکل شوی دی . نوموړی آثر استاد مجاور احمد زيار ليکلی ، ښاغلی زيار

هغه پښتو ژبپوه دی ، چې د ژبې په برخه کې پراخه مطالعه لري ، په نړۍ کې د ژبڅېړنې په نويو بدلونونو پوه او د نويو ميتودونو په رڼا کې يې پښتو ته ژبني آثار وړاندې کړي دي .
وړاندې وويل شول ، چې د پښتو ژبې ياد گرامرونه ( پښتو گرامر او پښتو پښويه ) د پښتو ژبې د بېلابېلو برخو په سپړنه او تشريح کې جلا لارې لري ، خو ډېر گډ ټکي يې څېړلي دي.
نوم هغه ژبنی واحد دی ، چې يادو دواړو گرامرونو پرې بحث کړی ، د هغه بېلابېل اړخونه يې څېړلي او ډېر گټور مالومات يې وړاندې کړي دي . دا مالومات ، تر ډېره گډ ټکي لري ، خو لږ و ډېر توپير يې څرگند دی ، چې د دې ليکنې اصلي موخه ده . د دې څېړنيزې ليکنې په اډانه کې ، په دواړو گرامرونو کې د نوم څېړنې مالومات سره پرتله شوي او په ترڅ کې يې گډ اړخونه او توپيرونه روښانه شوي دي ، چې د ژبې درنو څېړونکو لپاره ترې د گټورتيا هيله کېږي .

## ۱ ـ د پښتو گرامر او پښتو پښويې لنډه پېژندنه

**۱ ـ ۱ پښتو گرامر او اروانباد استاد رښتين :** اروانباد پوهاند صديق الله رښتين د مرحوم مولوي تاج محمد زوی ، په ختيځ مومند ، د پښتو ژبې پوخ ليکوال ، نامتو شاعر او پياوړی پوهاند په ۱۲۹۸ هـ ش کال د مومندو د سيمې په (غازي اباد) کې زېږېدلی دی . د ده د ژوند زياته برخه د پښتو ژبې په ادبي څېړنو او علمي پلټنو کې تېره شوې او د پښتو او پښتونولۍ رښتينی مين او صادق خدمتگار دی ، په تېره بيا د پښتو ژبې په گرامر کې ښه لوی لاس لري او د استادۍ مرتبې ته رسېدلی دی .
اروانباد رښتين د ۷۹ کلونو په عمر د ۱۳۷۷ هـ ش کال د ليندۍ پر پينځمه په پېښور کې ومړ او د ننگرهار د بهسودو په هديره کې ښخ کړای شو. د تاليفاتو شمېر يې (۷۰) ښوول شوی دی په دغو کې شپېته چاپ شوي دي **( ۱ : ۴۶۴ ، ۴۶۷ )** .
استاد رښتين پر ۱۳۱۸ ل د لومړي ځل لپاره په رسمي دنده وگمارل شو او په همدغه کال يې د پښتو ټولنې غړيتوب هم ترلاسه کړ او او بيا يې د پښتو ټولنې په بېلابېلو څانگو کې وظيفه اجرا کړې ده ، لکه د قواعدو مدير ، د نشراتو رياست ، د دايره المعارف څانگه او نور **( ۷ : ۵۱۵ ) .**

د اروانباد پوهاند رښتين نامتو اثار دا دي : د پښتو ادبتاريخ ، د پښتو اشتقاقونه او ترکيبونه ، د پښتو لوی گرامر (په پارسي ژبه ) پښتو کيسي ، د هند سفر ، پښتو ژبښودنه ، د ژوند سندره ، نوی ژوند ، د ميني هينداره ، د پښتو مصدرونو لارښود او نور **( ۵ : ۱۴۲ ) .**

د لوی استاد اروانباد پوهاند صديق الله رښتين پښتو گرامر (لومړی او دويم ټوک) يوځای په يوه ټوک کې د يونيورسټي بک ايجنسي له خوا خپور شوی دی . د اروانباد رښتين دغه گرامر د پښتو ژبې اکاډميک ، علمي ، معياري او مکمل اثر دی . د نوموړي اثر پارسي متن ښاغلي سيد محی الدين هاشمي ، د اروانباد پوهاند صاحب په مشوره په پښتو ژباړلی دی او په ۱۹۹۴م کال چاپ شوی دی **( ۴ : ۱۲ ) .**

په همدې اړه « د پښتو ژبې لنډ گرامر » کې ليکل شوي :

پښتو گرامر ، اروانباد پوهاند رښتين په دري ژبه ليکلی ، لومړۍ برخه يې په ۱۳۲۷ لمريز کال د پښتو ټولنې له خوا او دويمه برخه يې په ۱۳۵۹ لمريز کال ليکل شوې او په ۱۳۷۰ لمريز کال د ښوونې او روزنې وزارت له خوا چاپ او خپره شوې ده **( ۷ : ۹ ) .**

**۱ ـ ۲ پښتو پښويه او استاد زيار :** پوهاند دوکتور مجاوراحمد زيار د عجب گل زوی ، پر ۱۳۱۴ ل کال د سپين غر د مزينې رود د اخون کلي په يوه بې کوره او بې ځمکې بزگره کورنۍ کې وزيږېد .

استاد زيار پر ۱۳۳۷ ل کال له دولسم ټولگي فارغ شو او پر ۱۳۳۸ ل کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو پوهنځي کې په زده کړو بوخت شو . پر ۱۳۴۱ ل کال يې له دې پوهنځي څخه ليسانس واخيست او د همدغه پوهنځي په کادر کې په تدريس او ژبنيو څېړنو بوخت شو. بيا د لوړو زده کړو په موخه سويس ته واستول شو او هلته يې د « برن » پوهنتون د ژبپوهنې ، ادبپوهنې او وگړپوهنې په څانگه کې د علومو دوکتورا واخيسته . پر ۱۳۵۱ ل کال يې هېواد ته له راستنېدو سره خپلې استادۍ ته دوام ورکړ **( ۱۰ : ۷ - ۸ ) .**

د اوسنیو ګرامرونو په لړ کې پښتو پښویه ، چې پر ۱۳۸۴ ل چاپه شوې ده ، د پښتو ژبې ګرامرپوه پوهاند زیار لیکلی ، پوهنتوني ګرامر دی ، چې د ګرامر (غږپوهه ، ګړپوهه او غونډله پوهه) برخې پکې څېړل شوي دي ( ۸ : ۱۰۰ ) .

## ۲ـ نــوم

د نوم په اړه په دواړو ګرامرونو (ګرامر او پښویه) کې راغلې پیژندنې داسې دي ، چې په ټوله کې توپیر نه لري ، خو په نورو برخو کې بیا توپیرونه شته ، لومړی به د نوم په اړه د دې ګرامرونو پېژندنې ولولو :

نوم هغه کلمه ده ، چې د زمانې له ښوولو څخه پرته مستقله مانا لري او د یو شي ، شخص یا یو کیفیت د نومولو لپاره استعمالیږي . لکه سړی ، لرګی ، وېره او نور ( **۳ : ۳۸** ) .

نوم هغه ویی دی ، چې د کړ په توپیر بې له زماني اړیکي د راز راز څېزونو او ښکارندو څرګندونه کوي ، په بله وینا : نوم هغه ویي ډول دی ، چې له اوړوني ګړونو (تصریفي مورفیمونو) ، لکه : د پېر ، ګڼې ، نوږي (او وګړي) له هغو سره بېلابېلې بڼې راخپلوي ، لکه : تیره ، لرګی ، سړی سړیتوب( **۵ : ۸٦**).

په دې ځای کې دا یادونه اړینه ده ، چې ووایو د نوم څېړنه د اروانښاد صدیق الله ښتین په (پښتو ګرامر) او د مجاوراحمد زیار په (پښتو پښویه) کې توپیر لري ، چې ځای ځای به ورته اشاره وشي .

اروانښاد استاد ښتین نوم د کلام له اجزاوو څخه بولي ، چې نور یې ضمیر ، صفت ، فعل ، قید او ادات دي ، په همدې ډول ، پورتني واحدونه جلا جلا په بشپړ ډول تشریح کوي . خو استاد زیار نوم د مورفولوژۍ د لومړۍ برخې په توګه تر څېړنې لاندې نیسي. استاد ښتین نوم د مفهوم ، کیفیت جوړښت ، کمیت ، فعلیت او نافعلیت له مخې په پنځو ډولونو ویشي چې هر ډول یې بیا نور ډولونه لري ، خو استاد زیار نوم په څلورو ډلو (څېزنومونه ، ستاینومونه شمېرنومونه او نومځرو) ویشي ، چې دا بیا خپل ډولونه لري . دلته دا یادونه هم اړینه ، چې

ووايو ، استاد رښتين او زيار دواړه د پښتو هغه پوهان دي ، چې په ډېرو برخو کې ، د څېړنې بېلابېلې لارې او ميتودونه لري او بېلابېلې ژبپوهنيزې نومونې کاروي . موږ تر ډېره د دوی دا امانت خوندي کړی دی .

## ۳ ـ د جنس له مخې د نومونو وېش

په پښتو ژبه کې نومونه د جنس له مخې په دوو برخو وېشل کېږي ، چې نارينه او ښځينه يې بولي .

**۳ ـ ۱ نارينه نومونه :** ارواښاد استاد رښتين په ( پښتو ګرامر ) کې نرينه نوم ښښې داسې راپېژني :

۱ ـ هغه نومونه ، چې په ( ی ) پای شوي وي ، لکه : لرګی ، سړی .

۲ ـ هغه نومونه ، چې په څرګند (واو) پای شوي وي ، لکه : تارو ، بانړو ، کدو .

۳ ـ هغه صفتونه ، چې په څرګنده (ي) پای شوي وي او نسبتي صفت څرګندوي ، نرينه دي، لکه : دوبي ، موچي ، شوقي .

۴ ـ هغه ښاکښ او يا په هغو پورې اړه لرونکي نومونه ، چې په کوچنۍ ( هـ ) پای ته رسېدلي وي ، لکه: تره ، وراره ، زړه ، نيکه ، پسه.

۵ ـ په نرم (واو) پای شوي نومونه ، لکه : کنډو ، پلو ، لو .

٦ ـ ټول هغه نومونه ، چې په صحيح توري پای ته رسېدلي وي ، لکه : لاس ، اور .

يادونه : ساکنه (ی) چې دمخه يې ساکن (و) اويا (الف) وي ، د صحيح توري حکم لري او پر هغه باندې پای ته رسېدلي نومونه نرينه ګڼل کېږي ، لکه : زوی ، سوی ، لوی ، ځای ، چای (۳: ۷۱ ، ۷۲) .

استاد زیار په (پښتو پښویه) کې نرینه نوم نښې په لاندې ډول ښیي :

۱ ـ چې وروستی آواز یې بېواک وي ، لکه : ورور ، لېور ، تربور ؛ بېدوده زیاتره د خپلواکو نومونه لکه : مور ، خور ، نږور. یا هغه ښځینه نومونه ، چې د وینګ پر وخت زیاتره خپل پای خپلواک غورځوي لکه: ستن ، درغن ، میچن ، ورځ .

۲ ـ له زورکي والې (ی)او زورکي وال (و) پرته هر نوم ، چې په غبرګغږ پای ته رسېدلی وي نرینه دی لکه : لرګی ، وری ، ځای ، زوی .

۳ ـ هغه نومونه ، چې په زورکي پای کېږي ، لکه : تره ، وراره ، زړه .

۴ ـ هغه نومونه ، چې په لنډ ( و ) پای ته رسي ، لکه : چاکو ، ټټو ، اردو .

۵ ـ په لنډه ( ي ) پای کېدونکي نرینه نومونه یواځې په چارنومونو اړه لري ، لکه : درزي ، موچي ، ټوکي ، چرسي .

۶ ـ ځینې کوشنینومونه ، چې پر اوږده (و) پای مومي ، لکه : کاکو ، لالو ، بلو( **۵ : ۸۷ ، ۸۸** ).

د نرینه نوم نښو په څېړنه کې ، دواړه ګرامرونه کوم ستر توپیر نه لري ، په دواړو کې نږدې ورته نښې ښودل شوي دي ، خو د نښو په ښوولو او د نومونو ( اصطلاحاتو) په کارونه کې یې لږ و ډېر توپیر شته. پر پښتو ګرامر د عربي ژبې د ګرامر اغېز څرګند دی . همدارنګه ځینې نور توپیرونه ، د بېلګې په توګه : د پښتو ګرامر د نرینه نوم نښو دوه مادې (۱ او ۵) استاد زیار په یوه ماده (۲) کې داسې رالنډې کړې دي : « له زورکي والې (ی) او زورکي وال (و) پرته هر نوم ، چې په غبرګغږ پای شوی وي ، نرینه دی».

همدارنګه ، د (پښتو پښویې) د نرینه نوم نښو (۶) مه ماده داسې نومونه نرینه راښیي ، چې په(پښتو ګرامر) کې ورته اشاره شوې نه ده .

**۳ ـ ۲ ښځینه نومونه**

پښتو ګرامر ، ښځینه نوم نښې داسې راپېژني :

۱ ـ هغه نومونه ، چې په څرګنده (هې) پای شوي وي ، لکه : کوربه ، میلمه .

يادونه

الف : په غيرساکښو کې ( چاړه ، وياله ، وړانګه ، خوله ) نومونه که څه هم په کوچنۍ (هې) پای ته رسېدلي دي ، خو استثناءً ښځينه ګڼل کېږي ، ددغه نومونو په منځ کې (الف) راغلی دی.

ب : هغه صفتونه ، چې د نارينه او ښځينه لپاره مشترک دي ، لکه : ساده او يا په مقابل کې مونث ولري ، لکه : مېلمه او کوربه ، چې ښځينه يې مېلمنه او کوربنه ده . څرګنده (هې) يې د تانيث نښه نه ګڼل کېږي.

۲ ـ هغه نومونه ، چې په پای کې يې زورکۍ واله ( ۍ ) وي ، لکه : خولۍ ، ښپلۍ .

۳ ـ په پښتو کې غيرساکښ نومونه ، چې په (الف) پای ته رسېدلي وي ، ښځينه دي ، لکه : ژړا ، خندا ، شا ، ملا ، رڼا ... خو په ساکښو کې ښځينه نښه نه ده او پرته له (غوا ، نيا ، انا ، بلا ، مينا) څخه په نورو ټولو ساکښو کې د نارينه نوم په پای کې راغلی دی ، لکه : سنډا ، چاړا ، بابا ، کاکا ، دادا ، بوډا او نور .

۴ ـ هغه نومونه او مجرد صفتونه ، چې په څرګنده اصلي ( ي ) پای ته رسېدلي وي ، ښځينه دي ، لکه : بياتي ، دوستي ، ښادي .

۵ ـ اوږد (واو) : هغه نومونه ، چې په پای کې يې اوږد ( مجهول ) واو وي ، ښځينه ګڼل کيږي ، لکه : زانګو ، لامبو ، پيشو .

٦ ـ هغه نومونه او صفتونه ، چې په درنه اوږده (ې) پای ته رسېدلي وي ، ښځينه دي ، لکه : ترېې ، ملګرې.

په دې ترڅ کې (پښتو ګرامر) يو شمېر نومونه سماعي مونث بولي ، لکه : لمن ، څنګل ، برېستن وريځ ، مياشت ، همدارنګه په هغو نومونو هم څه ويل شوي نه دي ، چې وروستيو آوازونو يې تاريخي بدلون موندلی ، لکه : خوله ، وياله ، چاړه .

پښتو ګرامر ښځينه نومونه په دوو ډولونو ويشي ، چې يو ته يې حقيقي (ساکښ) او بل ته غير حقيقي (غيرساکښ) وايي ، چې موږ دلته پرې بحث نه کوو ( **٣ : ٧٢ - ٧٣** ) .

همدارنګه ، پښتو پښويه ښځينه نوم نښې داسې راپېژني :

١ ـ له زورکي او لنډ (و) پرته هغه نومونه ، چې په خپلواکو پای ته رسېدلي وي لکه : ادې ناوې، ښادي ، وداني ، پڼه ، منه ، رڼا ، برېښنا ، خندا ، آريانا ، پيشو ، زانګو ، بيزو ... بېدوده يو لړ هغه نومونه راځي چې په خپلوانو ، ورهنګرو او يا هم په ځينو پورويونو آړه لري، لکه: دادا (پلار) ، ماما ، کاکا ، لالا ، بېړا ، بډا ، بوډا ، مېلمه ، کوربه ، غوبه ، ساده .

٢ ـ د زورکي وال (و) په غبرګغږ پای کېدونکي نومونه ، لکه : کټو ، بړو .

٣ ـ په زورکي والې (ۍ) پای کېدونکي نومونه ، لکه : ډوډۍ ، هوسۍ ، څڅۍ **(٦ : ٨٨ - ٨٩)**.

د ښځينه نوم نښو په څېړنه کې هم په ټوليز ډول په دواړو ګرامرونو کې ډېر توپير نه شته ، بياهم پر پښتو ګرامر د عربي ژبې اغېز ښکاره دی . پښتو پښويه کې ، د تېر په څېر د پښتو ګرامر ټول مواد په لنډ ډول وړاندې شوي دي . د دې ترڅنګ دويمه ماده داسې نښې راپېژني چې په پښتو ګرامر کې ورته اشاره شوې نه ده : د زورکي وال (و) په غبرګغږ پای شوي نومونه ، لکه : کټو ، بړو هم ښځينه بلل شوي دي .

بله موضوع ، چې وړاندې هم ورته اشاره وشوه ، د هغو نومونو ده ، چې د تاريخي بدلون په ترڅ کې ترې ځينې آوازونه غورځېدلي ، چې دوی ته يې (سماعي مونث ) ويلي ، چې دا ډول په عربي ژبې پورې ځانګړې دی او پښتو کې نه شته ، لکه : برېستن ، ستن ، وريځ ، څنګل ، مياشت او لمن . څرنګه ، چې دا نومونه په پای کې (زور) لري ، نو ښځينه دي . همدارنګه هغو نومونو ته هم اشاره شوې نه ده ، چې تاريخي غږيز بدلون يې منلی او آوازونه يې په نورو اوښتي ، لکه : خوله ، وياله ، چاړه ، چې اوس يې وروستی آواز ( زورکی ) دی ، خو پخوا ( زور ) و او حتی اوس هم په ځينو پښتنو کې په (زور) ويل کېږي ، د دې نومونو جمع کټ مټ

د هغو په څېر کيږي ، چې په (زور) پای شوي وي : ( خولې ، وياله ، چړې ) . دا نومونه بيا پښتو پښونيې ګرد سره رااخيستي نه دي ( ۲ : ۳٦ ، ۳۹ ) .

## ۴ ـ د عدد ښني

په پښتو ژبه کې داسي بېلابېلې ښنې شته ، چې نومونه جمع کوي ، چې داهم په دوو برخو ويشل کېږي ، يوه برخه يې هغه دي ، چې نرينه نومونه جمع کوي او بله برخه يې هغه دي چې ښځينه نومونه جمع کوي ، په لاندې ډول :

### ۴ ـ ۱ د نارينه نومونو د عدد ښني

پښتو ګرامر د نرينه نومونو د عدد ښنې داسي ښيي :

۱ ـ هغه نومونه او صفتونه ، چې په نرمه (ی) پای ته رسېدلي وي او په سر يا منځ کې يې خج موجود وي . ساکښ وي که غيرساکښ ، ساده وي که مرکب ، يواځې په يوه بڼه جمع کېږي او هغه داچې نرمه (ی) په څرګنده (ي) بدلېږي ، لکه : کاڼي ، سړي ، ملګري .

۲ ـ هغه نومونه او صفتونه ، چې په نرمه (ی) يې پای ته رسېدلي وي او خج يې د کلمې په سر او منځ کې موجود نه وي . دغه ډول نومونه په دوه ډوله دي :

الف : غيرساکښ نومونه او صفتونه د لومړۍ قاعدې له مخې نرمه (ی) يې په څرګنده (ي) تبديلېږي او جمع يې جوړېږي ، لکه : پټکي ، لښتي ، لرګي .

يادونه : ځينې پښتانه دغه ډول نومونه په (ان) هم جمع کوي ، لکه : لښتيان ، اغزيان او نور خو دا غير فصيح دي.

ب : ساکښ نومونه او صفتونه په دوو صورتونو ، يعني هم په څرګنده (ي) او هم په پای کې د (ان) په ورزياتولو جمع کېږي ، خو په دويم صورت کې يې وروستۍ ساکنه (ی) مفتوحه او تر هغې دمخه توری ساکن کېږي ، لکه : ليونی ـ ليونيان ، مېړی ـ مېړيان ، زلمی ـ زلميان .

يادونه : ځينې پښتانه يو شمېر ساکښ نومونه په يوه بڼه په څرګندې (ي) سره جمع کوي ، لکه : سړی ـ سړي ، مېړی ـ مېړي .

۳ ـ هغه نومونه ، چې په پای کې يې نرمه نسبتي (ی) چې مقصد ورڅخه استوګنځي او هېواد ته نسبت دی راغلي وي ، هم په نومونړو دوو صورتونو جمع کېږي ، لکه : کابلي ـ کابليان ، پېښوري ـ پېښوريان سدوزي ـ سدوزيان .

يادونه

۱ ـ په نسبتي (ی) پای ته رسېدلو نومونو جمع خاص د اشخاصو لپاره ده او که له اشخاصو څخه پرته نور څيزونه مطلوب وي په هغه صورت کې يواځې په يوه بڼه يعنې څرګندې (ي) جمع کېږي ، لکه : دا پټوان کابلي دي ، هراتي کرکونه مشهور دي .

۲ ـ هغه صفتونه ، چې په (ان) سره جمع کېږي له هغو سره د موصوف استعمال فصيح نه دی ، لکه: کابليان سړي . که په څرګنده (ي) جمع شي ، په هغه صورت کې له موصوف سره او هم غير له موصوف سره استعمالېدای شي ، لکه : کابلي سړي دي ، کابلي راغلي دي. يا دا پېښوري دي ، دا پېښوري هلکان دي .

۳ ـ هر نوم او مفرد نرينه صفت ، چې په پای کې يې څرګنده (ي) يا (و) وي ، دغه دواړه مفتوح او دمخه توری يې ساکن کېږي او په پای کې يې (ان) راځي ، لکه : موچي ـ موچيان دوبي دوبيان ، چرسي ـ چرسيان .

يادونه : په (کړتو او ګېډو) کې د قياس پر خلاف (و) په (ی) بدلېږي او (کړتيان او ګېډيان) ويل کېږي.

۴ ـ هر هغه نوم ، چې په پای کې يې څرګند اصلي (و) وي يا په (الف) پای ته رسېدلي نومونه او صفتونه او همدارنګه په څرګنده (هې) پای ته رسېدلو صفتونو په پای کې د (ګان) نښه ورزياتېږي او جمع يې جوړېږي ، لکه: بابا ـ باباګان ، ځانړو ـ ځانړوګان ، بورا ـ بوراګان .

يادونه

الف : (کدو ، کندو ، ماکو ، ټانګو) نومونه په پای کې د (ان) په ورزیاتولو هم جمع کېږي لکه : کدوان کندوان ، ماکوان او ټانګوان .

ب : ( شفتالو ، زردالو ، کچالو ) کلمې د (و) په حذف کېدلو او په پای کې د (ان) په ورزیاتولو هم جمع کېږي ، لکه : شفتالان ، کچالان ، زردالان .

ج : د مېلمه کلمه ، چې ځانله مونث لري په مېلمانه جمع کېږي .

۵ ـ په پښتو کې بیګانه استعمالېدونکي نومونه ، چې اصلاً پښتو نه دي ، که په (الف) پای ته رسېدلي وي جمع یې د (یان) په ورزیاتولو سره کېږي ، لکه : مرزایان ، ملایان ، اشنایان .

٦ ـ هر هغه مفرد نرینه ساکښ نوم او ټول هغه صفتونه ، چې په منځ کې یې (و) او ساکنه (ی) راغلې وي ، که چیرته یې په ښځینه مفرد کې (و) حذف شوی وي ، د جمع د جوړولو په وخت کې یې (و) او (ی) په (الف) بدلېږي ، په پای کې یې کوچنۍ (هې) ورزیاتېږي او جمع یې جوړېږي ، لکه : پښتون ـ پښتانه ، شپون ـ شپانه ، کوږ ـ کاږه .

یادښت : څرنګه ، چې د ( خربه ، غوبه ، اسبه ، ګډبه ، اوښبه ، کوربه ) نومونه په اصل کې (خربون ، غوبون ، اسبون ، ګډبون ، اوښبون ، کوربون ) دي او (به) پکې د (بون) مخفف دی چې د صاحبیت له اداتو څخه دی ، نو جمع یې د نومورې قاعدې له مخې (خربانه ، غوبانه ، اسبانه ، ګډبانه ، اوښبانه او کوربانه) راځي .

استثناء

د ( سورـ شین )صفتونه له دې قاعدې څخه مستثناء دي ، چې جمع یې د قاعدې پرخلاف د (و) په حذفېدلو او په پای کې د کوچنۍ (هې) په راوړلو سره کېږي ، لکه : سره ـ شنه .

همدارنګه ( شکون ـ شپون ) په ځینو ځایونو کې په (شکنیان ، شپنیان ) سره جمع کېږي او ( تریو ـ تریخ ) په (ترخه) او (تروه) سره جمع کېږي .

۷ ـ هغه صفتونه ، چې په مفرد ښځینه کې یې د منځ (و) او (ی) په خپل حال پاتې او حذف شوی نه وي ، په دوه ډوله دي :

الف : هغه ، چې جمع نه لري او د مفرد او جمعې لپاره يو ډول استعمالېږي ، په لاندې ډول دي: غوڅ لاس ـ غوڅ لاسونه ، جوړسړی ـ جوړ سړي ، سپين مخ ـ سپين مخونه ، لوی ميز لوی ميزونه .

ب : هغه ، چې جمع لري ، خو په بېلابېلو بڼو جمع کېږي ، لکه : (خوږ ، خور ، سور) له (و) څخه وروسته د (الف) په راوړلو او په پای کې د (هې) په زياتولو او (تود) له (و) څخه دمخه د (الف) په زياتولو او په پای کې کوچنۍ (هې) په راوړلو او د ( اوم ، خوشت ، اوږد ، زرغون ) يواځې په پای کې د (هې) په زياتولو سره جمع کېږي ، لکه : (خواږه ، خواره سواره ، تاوده) .

يادونه : دغه ټول صفتونه په پښتو کې لږ او محدود دي او غالباً له پورتنيو يادو شويو صفتونو جمع په اوربېدنې پورې اړه لري .

۸ ـ هغه مفرد نوم ، چې په کوچنۍ (هې) او يا نرم (و) پای ته رسېدلي وي ، جمع يې په پای کې د (ونه) په راوړلو جوړېږي او نومورې (هې) د جمع جوړولو په وخت کې له منځه ځي لکه : کنډوونه ، ترونه لوونه ، مېرونه ، پسونه.

يادونه : د ( لېوه ، کارغه ، وېښته ) نومونه په (ان) سره جمع کېږي ، لکه : مارغان ، وېښتان همدارنگه پسه په پسان او نيکه په نيکه گان هم جمع کېږي .

۹ ـ دوه توريز او يو هيجايي نومونه ، چې ساکښ او يا د ساکښو صفات وي ، د لومړي توري په سکون او په پای کې د کوچنۍ (هې) په ورزياتولو سره جمع کېږي، لکه : خره ، غله ، مره پره.

يادونه : شل (لنگ) که څه هم دوه توريز ساکښ صفت دی ، خو له نومورې قانون څخه بهر گڼل شوی او جمع يې استعمال نه لري .

۱۰ ـ ټول بې سا نومونه ، چې په صحيح توري پای ته رسېدلي وي او جمع يې له اتمې مادې سره سمه جوړه نه شي ، په پای کې د (ونه) نښې په زياتولو جمع کېږي او په ځينو نومونو کې

کومکي توري هم د تخفيف لپاره غورځېږي ، لکه : لاسونه ، کورونه ، غرونه ، پورونه مړوندونه ، قلمونه ، خويونه ، بويونه.

يادونه : د (و) حذف کېدل زياتره په دوه هجايي کلمو کې راځي ، خو په لور(داس) کې د لور (طرف) سره د التباس له مخې يې جمع لرونه (داسها) راځي .

۱۱ ـ ټول ساکښ نومونه او د ساکښو ځانگړي صفتونه ، چې په صحيح توري پای ته رسېدلي وي ،عموماً د (ان) په زياتولو سره جمع کېږي ، لکه : چرگان ، اوښان ، لړمان ، خانان ، زرگران ، رنځوران ، ملکان پړانگان ( ۳ : ۸۵ - ۹۸ ) .

ښتوښويه د نرينه نومونو د عدد نښې داسې ليکي :

۱ ـ ان : زياتره هغه نارينه نومونه ډيرگړي کوي ، چې ښواکپای او ساوالا وي ، لکه : پړانگان هلکان مچان ، کبان . ځينې خپلواک پای نرينه نومونه ، لکه : لېوان ، ټټوان ، سويان ، لويان. ښدوده ، لکه : وړيان ، چې يوگړی (وړی ) يې ډېر لږ دود دی ، خو لښتيان ، شونډان ... له کره ښتو سره هېڅ اړخ نه لگوي . د (پېرانيان يا پيريانان ، لړمانان ، امرگان يا امرگانان ) غوندې د ډېرگړي ډېرگړي هسې د ډېرښت يا سپکاوي لپاره راځي او معياري ارزښت نه لري.

۲ ـ ونه : زياتره ښواک بې سا نرينه نومونه ډېرگړي کوي ، لکه : سيندونه ، ډنډونه ، مېزونه ، کتابونه ، لاسونه ، سرونه ، وزرونه ، پلوونه ، خوړونه ، توپونه .

ځينې خپلواکپای نرينه نومونه ، لکه : ترونه ، وريرونه ، زړونه . ځينې ساوالا ښواکپای نرينه نومونه لکه: لېورونه ، ورونه ، پلرونه د پلاران ، تربرونه د تربوران ، اسونه د اسان يا پسونه د پسان ترڅنگه .

۳ ـ له منځ خپلواکونج سره ، لکه د ټوپک او دښمن زورونه پر زورکيو اوښتل .

۴ ـ منځ خپلواکونج (ablaut) + زورکی : دا ډېرگړی ډول هغه نرينه نومونه رانغاړي ، چې په يوگړي بڼه کې يې (و، ی) راغلي وي او د ډېرگړي کېدو لپاره يې دغه منځ خپلواک پر (زور) يا (الف) اوړي او همزمان ورسره زورکي ـ پايله هم ملگرې کېږي ، لکه : ښتون ـ ښتانه ، ورون ـ

ورنونه ، لمونځ ـ لمنځونه ، زېږ ـ زږه ، ترپو ـ تروه ، تریخ ـ ترخه (تراخه) ، لور لرونه ، وزر ـ وازرونه .

۵ ـ زورکی : ځینې یو څپیز او دوه څپیز نرینه ، چې له دوو او درو بېواکو او یو یا دوو منځ خپلواکو څخه رغېدلې وي ، ډېرگړي کوي ، لکه : خره ، غله ، مره .

٦ ـ لنډه (ي) : هغه نومونه ډېرگړي کوي ، چې پر نرمه یا زورواله (ی) پای وي ، لکه : لرگي زلمي ، لښتي ... د دې روستاړي په همچاري (ان) او (ونه) هم لږ و ډېر راځي ، لکه : زلمیان غویان ، وییونه ، خورییونه.

۷ ـ یان : د (ان) بلگړ دی او ځینې غبرگغږپای او خپلواکپای نرینه نومونه ډېرگړي کوي ، لکه : ملایان میرزایان ، اشنایان ، بډایان ، خدایان .

۸ ـ گان : چې د (ان) همچاری (بلگړ) دی او ځینې خپلواکپای نرینه نومونه ډېرگړي کوي لکه: سنډاگان لاټوگان ، کدوگان ، ټټوگان ، ماماگان، کاکاگان ، لالاگان ، بېراگان ،بوډاگان... د امراگان یا امراگانان غوندې بیا ځلي ډېرگړې بنې ، لکه : له مخه چې وویل شول ، د ډېربښت یا سپکاوي لپاره راځي او معیاري ارزښت نه لري .

۹ ـ یو شمېر نرینه نوږ نومونه ، چې یوگړي نه لري او تل ډېرگړي کارول کېږي ، هم په دې لیکه کې راځي ، لکه : غنم ، جوار ، زر ، درمل ، تېل ، غوړ .

۱۰ ـ (ي) : پای ( چار- ) نومونه په (ان) ډېرگړي کېږي ، لکه : دوزخیان ، موچیان ، دوبیان ټوپکیان چرسیان .

۱۱ـ له ښځینه نوږي سره گډ ستاینومونه ، لکه : زور- پای : بېچاره ، بې موره ، بېوزله ، بېکوره ، ښایسته ډاډه ، ساده یا الف – پای : الونیا ، لگیا ، هوسا یا لرغوني نومونه : آریا یما ، کنېشکا اهورا ، مزدا ، بودا.

يادښت

۱ ـ په پښتو کې زياتره خپل او پردي ټبرنومونه همزمان هم يوګړي او هم ډېرګړي کارول کېږي لکه : سهاک ، غرغښت ، سړبن ، مومند ، کورد ، بلوڅ ، تاجيک ، هزاره ، اوزبېک يواځې يوګړي پای هغه د يوه او ډېرو توپيرکوي ، لکه : بيټنی ـ بيټني ، شينواری ـ شينواري افغان ـ افغانان ، جرمن ـ جرمنيان ، انګريز ـ انګريزان ، پښتون ـ پښتانه يا ګدون ـ ګدانه خو له آره دا توپير لرلی دی .

۲ ـ ټول ژبنومونه په دې ښځينه راځي ، چې په ښځينه پايلو ( و ـ ي ) پای ته رسي ، لکه : پښتو پارسي عربي ، فرانسي ، انګريزي يا انګليسي ... . اردو په اوږده (و) او تر همدغه اغېز لاندې دلته يوه بېدودي رامنځته کوي او اردو (پوځ) په ناسمه توګه ښځينه کارول کېږي.

۳ ـ ډېرګړي يا دوګړي پورويېونه ، لکه : عربي معلومات ، اخلاق ، بين النهرين ... په پښتو کې ډېرګړي بلل کېږي **(٦ : ۸۹ - ۹۱ )** .

د تيرو څېړنو په څېر بياهم د نرينه نومونو د عدد ښتې ، په دواړو ګرامرونو کې نږدې ورته دي ، خو په جزياتو کې څه نا څه توپير لري ، چې دلته به پرې وغږېږو :

پښتو ګرامر بياهم د خپل دود له مخې ډير جزيات او تشريحات ورکړي ، اوږد بيان لري چې تر يو ځايه ګټور دی ، د عربي اغيز بياهم پرې خرګند دی . خو د دې پر وړاندې پښتو پښويه بيا د پښتو ګرامر اوږده بحثونه راټولوي او لنډوي يې ، تر ډيره هغه معناوې ، چې پښتو ګرامر يې په ډيرو کلمو او جملو کې رانغاړي ، پښويه يې په لنډ ډول فورمولي کوي . پښويې ټول هغه مورفيمونه او فونيمونه په پيل کې راوړي ، چې پښتو نومونه جمع کوي . دا کار پښتو ګرامر کې شوی نه دی . پښتو ګرامر او پښويې دواړو د ( ي ، ان ، ګان ، يان ، زورکی ونه او صفر ) ښتې د نرينه نومونو د جمع کولو لپاره په ښه کړي دي .

پښتو ګرامر د درېيمې ګڼې نه وروسته يادونه کې ( کړتو او ګېډو ) کلمې داسې ښيي ، چې ګواکې په (يان) جمع کيږي او د ( کړتيان او ګېډيان ) بڼه خپلوي ، خو ماته ډير دود نه ښکاري کېدای شي کوم ګړدود کې وي ، خو عام نه دي . د دې نومونه ښه جمع په (ان) سره کيږي او د ( کړتوان او ګېډوان ) بڼه خپلوي .

په څلورمه ګڼه کې ( څانډو ) داسې نوم بللی شوی ، چې په ( ګان ) جمع کيږي (څانډوګان) خو زما په فکر په (ان) يې هم جمع دود ده او خلک يې ( څانډوان ) هم وايي ، دا راته تر هغې خوږه او اسانه برېښي .

د څلورمې ګڼې په ( الف ) برخه کې د ( کدو ) نوم جمع په (ان) ښوول شوې ده ( کدوان ) خو پښتو پښويه بيا پخپله اتمه ګڼه کې د دې کلمې جمع په ( ګان ) ښيي او هغه ( کدوګان ) ليکي .

پښتو ګرامر د څلورمې ګڼې په ( ب ) برخه کې د ( شفتالو ، زردالو او کچالو ) جمع د ( و ) په غورځېدلو او د ( ان ) په نښلو سره ښيي ، لکه : شفتالان ، زردالان او کچالان ، چې په دې اړه مې په پښتو پښويه کې څه پيدا نه کړل.

د پښتو ګرامر د شپږمې ګڼې وروسته يادښت کې د ( خربه ، غوبه ، آسبه ، ګډبه ، اوښبه او کوربه) نومونه ، چې د بڼې له مخې ښځينه او د معنا له مخې نارينه دي ، جمع يې ( خربانه ، غوبانه ، آسبانه ، ګډبانه ، اوښبانه او کوربانه ) ښوول شوې دي ، پښتو پښويه د داسې نومونو په اړه څه نه وايي . پښتو ګرامر په ياد يادښت کې د ( سور او شين ) ستاينومونو په اړه هم څرګندونې کړي ، چې جمع يې ( سره او شنه ) کيږي ، په دې اړه هم پښتو پښويه څه نه ليکي . خو دې ته مو بايد پام وي  چې د ( سور او شين ) ستاينومونه د خپل موصوف سره د جنس ، شمير او حالت له مخې ځان اړوي او يواځې د ( سره او شنه ) په بڼه نه پاتېږي لکه : ( سور مخی ، سره ټيکري ، سرې منې ، سره چرګه ، د سره سړي ، د سرې نجلۍ ، له سرو ښځو ... .

پښتو ګرامر د اوومې ګڼې د (ب) په برخه د ( خوږ ، خور ، سور او تود ) کلمې راوړي ، چې جمع يې ( خواږه ، خواره ، سواره ، تاوده) ده ، په دې اړه هم پښتو پښويه څه نه لري ، خو دا

ستاينومونه هم د تيرو ( سور او شين ) په څېر بېلابېلې بڼې لري او يواځې په پښتو ګرامر کې ياد جمع حالتونه يې يواځينۍ بڼې نه دي .
په پښتو پښويه کې هم داسې څرګندونې شته ، چې په پښتو ګرامر کې نشته ، لکه : پښتو پښويه پخپله درېيمه ګڼه کې ليکي ( له منځ خپلواکونج سره ، لکه د ټوپک او دښمن زورونه پر زورکيو اوښتل) . دا ډول نومونه په پښتو ګرامر کې ياد شوي نه دي .
د ( ټټو ) نوم د پښتو پښويې په ( ۱ او ۸ ) ګڼه کې يوځای په ( ان ) او بل ځای په ( ګان ) جمع شوی دی ، فکر کوم په دواړو مورفيمونو سم راځي او دود دی . په پښتو ګرامر کې بيا دغه کلمه کټ مټ نشته ، خو دې ته ورته نومونه ( کدو ، کندو ، ماکو او ټانګو) يې په (ان) جمع کړي دي .
د پښتو پښويې د (۱۱) ګڼې نه وروسته د « يادښت » په درېو ( ۱ ، ۲ او ۳ ) ګڼو کې داسې څرګندونې شوي دي ، چې په پښتو ګرامر کې نه ليدل کيږي .

**۴ ـ ۲ د ښځينه نومونو د عدد نښې**

پښتو ګرامر د ښځينه نومونو د عدد يا جمعې نښې داسې راپېژني :
۱ ـ هر مفرد ښځينه نوم ، چې په (و) يا (الف) پای ته رسېدلی وي ، جمع يې د (ګانې) په زياتولو سره کېږي ، لکه : زانګوګانې ، پيشوګانې ، نياګانې .
يادونه : ځينې پښتانه په (الف) پای ته رسېدلي ښځينه نومونه عموماً د (وې) په زياتولو سره جمع کوي لکه : خندا ـ خنداوې ، ژړا ـ ژړاوې ، رڼا ـ رڼاوې . همدارنګه په (و) پای ته رسېدلي غيرساکښ ښځينه نومونه هم په (وې) جمع کوي ، لکه : زانګوې ، ورشوې .
۲ ـ هر مفرد ښځينه نوم ، چې په څرګندې (ي) پای ته رسېدلی وي ، که غيرساکښ وي په زورکي واله (ۍ) او که ساکښ وي په پای کې د (ګانې) په زياتولو سره جمع کېږي ، لکه : دوستۍ خوارۍ ، ودانۍ بي بي ګانې ، مامي ګانې .

یادونه : ( بي بي ) د ( انې ) په زیاتولو هم جمع کېږي ، لکه : بیبیانې او کله غیرحقیقي ښځینه هم په (گانې ـ یانې ) جمع کېږي ، لکه : بدي گانې ، خواري گانې ، بیاتي گانې .
۳ ـ هغه ښځینه نومونه او صفتونه ، چې په ښځینه ( هې ) پای ته رسېدلي وي ، په دوه ډوله دي :
الف : هغه ، چې د کلمې په لومړنۍ او منځنۍ برخه کې یې شدید خج راغلی وي ، لکه : لښته ، زرکه  ختِه ، پاڼه .
ب : هغه ، چې د پای نه دمخه توری یې خفیف خج ولري ، لکه : ( پڼه ، پخه ، سره ) .
دغه دواړه ډوله نومونه په (ې) جمع کېږي ، خو ځینې پښتانه لومړي ډول (ي) ته ځرگنده او ځینې دواړو ته اوږده (ې) وایي : زرکې ، گټې ، ترخې ، مړې .
یادونه : د ( چاړه ، واله ، خمخاره ) د کلمو د جمع کولو په وخت کې (الف) له منځه ځي لکه : چړې  ولې ، خمځرې .
یادونه : ټول سماعي ښځینه نومونه ، چې په اصل کې (هې) لري ، لکه چې دمخه ورته اشاره وشوه ، نو هغه هم د لومړي ډول ښځینه نومونو په څېر په (ې) جمع کېږي ، چې ځینې پښتانه یې ځرگنده (ي) او ځینې یې اوږده (ې) بولي ، لکه : بنې ، ورځې ، لارې ، میاشتې ، چارې ځنگلې ، ستنې .
۴ ـ هغه ښځینه ، چې په پای کې یې زورکی واله (ۍ) یا اوږد (و) یې په غیرساکښو کې د جمعې او مفرد لپاره یوشان استعمالېږي او که چېرې د خپلوانو او پوه منو نومونه وي د (گانې انې) په زیاتولو سره جمع کېږي ، خو هغه کلمې ، چې په پای کې یې اوږده (ې) وي ، ځینې پښتانه یې ځرگنده (ي)  بولي لکه : څلور څوکۍ ، درې خولۍ ، درې شړۍ ، نوې جامې ترږې ښځې درې ملگرې .
یادونه : جنۍ او جلۍ د قاعدې پرخلاف په ( جینکۍ ، نجونه ، نجونې ) جمع شوي دي .کله دغه نومونه د زیاتې ځرگندونې لپاره په (گانې) هم جمع کېږي ، لکه : خولۍ گانې .

٥ ـ حقيقي ښځينه ، چې په درنه نسبتي او صفتي (ی) پای ته رسېدلي وي ، په مفرده بڼه هم د جمعې لپاره استعمالېږي او کله په پای کې د (انې) په زياتولو هم جمع کېږي ، خو (ی) يې مفتوحه او ور څخه دمخه توری ساکن کېږي ، لکه : چرسۍ ـ چرسيانې ، کابلۍ ـ کابليانې موچۍ ـ موچيانې .

٦ ـ په پښتو کې ښځينه نومونه له نارينه جمعې څخه په پای کې د اوږدې (ې) په زياتولو سره جوړېږي مګر دغې (ې) ته ځينې پښتانه څرګنده (ې) وايي ، لکه : ساده ګان ـ ساده ګانې ببراګان ـ ببراګانې .

٧ ـ د ( مور ، ترور ، نندرور ، خور ، لور ، يور ) نومونه ، چې حقيقي غيرلفظي ښځينه دي (چې دمخه بيان شوي دي ) په بېلابيلو بڼو داسې جمع کېږي ، چې په لومړيو څلورو نومونو کې (ور) او په درې پاتو کې (ر) حذف کېږي او پرځای يې ( يندې = ندې ) راځي ، لکه : ميندې ، تريندې نږيندې، نندريندې خويندې ) چې په وروستيو دوو نومونو کې (ر) له منځه تللې ده او پرځای يې (ڼه) يا (ڼې) راوړل شوي دي، لکه : (لوڼه = لوڼې ، يوڼه = يوڼې) هرکله ، چې (يندې – ڼې) د جمعې نښې نه ګڼل کېږي او نور مثالونه هم نه لري ، نوموړو جمعو ته سماعي جمعې وايو .

يادونه : تندار ، ورندار ، که څه هم د مور او خور په څېر له معنوي مونثاتو څخه دي ، خو استثناً د سماعي مونثاتو په څېر په پای کې د (ې) په زياتولو سره جمع کېږي ، لکه : تندارې ورندارې . ترور نندرور په ( تروريانې او نندروريانې ) هم جمع کېږي،لېکن د (خور ، مور) په کلمو کې خوريانې او موريانې غير فصيح دی ( **٣ : ١٠٦ ـ ١١٢** ) .

په پښتو پښويه کې ښځينه عدد نښې داسې ښوول شوي دي :

١ ـ اوږده (ې) : هغه ښځينه نومونه جمع کوي ، چې په ( زور) يا لږ و ډېر ( زورکي) پای ته رسي ، لکه: منې ، پزې ، خولې ، ويالې ، وړانګې ، ځانګې ، ډېوې ، شونډې ، سکروټې .

۲ ـ زورکې واله (ی) : هغه ښځينه نومونه ډېرګړي کوي ، چې په لنډه (ي) پای ته رسېدلي وي ، لکه : ودانۍ ، خپلوۍ ، ناروغۍ ، خوښۍ .

۳ ـ وې : هغه بې سا ښځينه نومونه ډېرګړي کوي ، چې په (الف) يا اوږده (و) پای ته رسي لکه : کلاوې ژړاوې ، خنداوې ، ملاوې ، نڅاوې ، رڼاوې . همدارنګه د (اناګانې) ترڅنګه (اناوې) هم دود لري .بل ناکره ډول يې (ګانې) هم راځي ، لکه : شاګانې ، نڅاګانې ، زانګوګانې يا تنداګانې ورنداګانې ندروګانې ... کره بڼې تېنداوې ، ورېنداوې او ندرېندې يا ندروريانې راځي .

۴ ـ ګانې : اوږد (و) پای ساوالا ښځينه نومونه ډېرګړي کوي ، لکه : بېزوګانې ، شادوګانې ببوګانې پيشوګانې ، نياګانې .

۵ ـ آنې : زياتره هغه ښځينه نومونه ډېرګړي کوي ، چې پای ته يې لنډه (ي) راغلې وي ، لکه: بيبيانې شاديانې او د يوې بلې پايلې د انډول په توګه ، لکه : دوبيانې ، مزدورانې ، ترورانې مورانې ، چې دومره کره نه برېښي .

٦ ـ يندې : هماغه بېواکپای خپلوان نومونه ډېرګړي کوي ، چې ورسره لنډون مومي ، لکه : ميندې ، خويندې ، ترېندې ، ندرېندې ، نرېندې ، ناکره څېلونه يې : مورګانې ـ مورانې ،خورګانې ـ خورانې ترورګانې ـ ترورانې .

۷ ـ نشت يا صفر دا مانا ، چې په زورکي واله (ی) پای نومونه بې له کومې جوليزې پايلې د ډېرګړي په توګه هم راځي ، لکه : کړکۍ ، بجلۍ ، ډوډۍ ، څپلۍ ، ټټرۍ . بلګړ يې (يانې) هم يو څه دود دی ، خو کره نه ګڼل کېږي ، لکه : کړکيانې ، بجليانې ، کوچيانې ، موچيانې . بېدوده ، لکه : نجونې او نجونه ، لونې او يونې .

ټول هغه ښځينه څيز نومونه او ستاينومونه او همدارنګه اړيکنومونه او چارنومونه هم ، چې د نرينه انډولو د بې خجه زوروالي (ی) ته پر وړاندې اوږده (ې) راخپلوي ، د ډېرګړي لپاره بله جلا پايله نه لري ، لکه : تنځرې ، مرغومې ، غړې ، روې ، تږې ، اوږدې ، غلې ، سترې.

۸ ـ يو شمېر نور نه شمېرېدونکي نوړنومونه هم ښځينه ډېرګړي دي ، لکه : اوربشې ، متيازې اوبه ، شنې نکريزې ( ٦ : ٩١ ـ ٩٢ ) .

د ښځينه نومونو د ګڼې يا جمعې نښې هم په دواړو ګرامرونو کې ورته راغلي ، کوم ستر توپير نه لري خو بيا هم د تېر په څېر ګرامر خپله او پښويې خپله لار او ميتود څارلی دی . ګرامر ډېر جزيات ورکړي چې بې ګټې نه دي او پښويې هغه راټول او لنډ کړي دي . پښتو ګرامر د نومونو له ذکر وروسته د جمعې نښې ښوولې او پښتو پښويې لومړی نښه او بيا يې نومونه ذکر کړي دي . دواړو ګرامرونو د ښځينه نومونو د جمعې نښې ( ګانې ، وې ، ی ، انې ، ې يندې ) ښوولې دي .

## ۵ ـ د نوم حالت

نومونه د خبرو پر مهال ، په بېلابېلو حالتونو کې کارېږي او بېلابېل حالتونه راخپلوي ، چې په لاندې ډول ، په دواړو ګرامرونو کې راغلي حالتونه تر څېړنې لاندې نيسو :

**۵ ـ ۱ فاعلي حالت** : کله چې نوم په جمله کې فاعل واقع شي ، يعنې يو کار له هغه څخه صادر او يا ورپورې تړلی وي ، فاعلي حالت دی ، لکه : سليم خط ليکي ، حميد کورته ځي. فعل لازمي وي که متعدي ، په دواړو صورتونو کې فاعلي حالت دی ( ۳ : ۱۱۴ ) .

فاعلي حالت په هغه فاعل پورې اړه لري ، چې د تېرمهال لېږند يا کړي يا (حکمي متعدي ) فعل ترسـره کوونکی وي ، لکه : يوه سړي يوه ښځه وليده يا يوې ښځې يو سړی وليد . دلته ( يو ـ سړي ) او ( يوې ـ ښځې ) فاعلي حالت لري ( ٦ : ۹۳ ) .

**۵ ـ ۲ مفعولي حالت** : که چېرې يو نوم په يوه جمله کې مفعول واقع شي ، يعنې فعل پر هغه پای ته ورسېږي هغه نوم ته مفعول او حالت ته يې مفعولي حالت وايي ، لکه : سليم ډوډۍ وخوړه ( ۳ : ۱۱۴ ) .

دغه برخې ته په پښتو پښویه کې اشاره شوې نه ده .

**۵ ـ ۳ ندايي حالت :** کله چې یو نوم ته غږ وکړای شي ، یعنې د اداتو په واسطه ورته غږ او یا یواځې د نوم په اخیستلو سره یې پام راگرځول مطلوب وي ، هغه نوم په ندايي حالت کې دی د نداء او غږ حالت کله د اداتو په واسطه او کله له هغو څخه پرته یواځې د نوم په اخیستلو سره رامنځته کېږي ، لکه : ای وروره ! یه ځوان هلکه ! **( ۳ : ۱۱۵ ـ ۱۱۶ )** .

ندايي حالت په هغه نوم اړه لري او بدلون ورکوي ، چې غږ ورته کېږي او په یوگړي ډول لکه: ( یه) هلکه ! یه مورې ! یه وروره ! یه میرمنو ! یه پښتنو ! **( ٦ : ۹۳ )** .

**۵ ـ ۴ باواسطه مفعولي حالت** : لکه : زمرک زمري ته قلم ورکړ ، غرزي ماته روسي ژبه را زده کړه . سنک ببري ته خبره وکړه . په دې غونډلو ( زمري ، ما ، ببري ) درېواړه نومه لر کړي پېر ورته اوښتی پېر لري **( ٦ : ۹۳ )** .

په دې برخه کې پښتو گرامر څه نه لري .

**۵ ـ ۵ الي حالت :** دا مانا چې یو نوم د یوه کړن وسیله شي ، لکه : بیاتي ، قلم ، کاشوغه په دې غونډله کې : توریالی په بیاتي ژوبل شو ، بریالي په قلم لیک وکېښ ، گلخانگه په کاشوغه ډوډۍ خوري **( ٦ : ۹۳ ـ ۹۴ )** .

که څه هم پښتوگرامر د نوم د حالتونو په برخه الي حالت نه یادوي ، خو یو بل ځای د الې نوم تر سرلیک لاندې لیکي : هغه نوم چې د فاعل او مفعول ترمنځ د فعل رسولو واسطه او وسیله وي او د هغې پواسطه یو فعل اجرا کېږي **( ۳ : ۲۷۰ )** .

**۵ ـ ٦ اضافي حالت :** هغه نوم ، چې یو څه ورپورې اړه ولري ، مضاف الیه گڼل کېږي او اضافي حالت لري ، لکه : د ویالې اوبه ښې دي ، د زمري کور ښکلی دی ، د اوریځې څادر راخپور شو . دلته ( ویالې زمري او اوریځې ) مضاف الیه دي یا په بله وینا ، د اضافي سربل

(د) او د ( کره ـ لپاره ) تر اغېز لاندې دغه درېواړه نومونه له بدلون سره مخ شوي دي ( **٦ : ٩۴** ) .

پښتوګرامر د نوم اضافي حالت د نوم د حالتونو تر سرليک لاندې نه څېړي او د اضافي ارتباط تر يوه جلا سرليک لاندې داسې ليکي :

که چېرې يو نوم د ارتباطي اداتو ، يعنې (د) او يا د ( زما ، ستا ، زموږ ، ستاسې ) ضميرونو په واسطه له بل نوم سره ارتباط او نسبت پيداکړي ، اضافي ارتباط ورته وايي ، همدارنګه اضافي ارتباط ته اضافي حالت هم ولای شو .

په اضافي ارتباط کې لومړنی نوم ته مضاف اليه او دويم ته مضاف وايي او دا د پښتو ژبې قاعده ده چې لومړی د اضافت نښه (د) ورپسې مضاف اليه او وروسته بيا مضاف راځي مثلاً ( د سليم قلم ، د کوټې ور ، زما کور ، زموږ وطن ) خو که چېرې مضاف اليه يو له ( مې دې ، يې مو ) ضميرونو څخه وي ، په دغه صورت کې پرته له (د) څخه مضاف رامنځته کېږي . مثلاً : زړه مې خپه دی ، اختيار دې خپل دی ، کتاب يې ورک شو ، اختيار مو خپل دی . د اضافي ارتباط مشهور ډولونه دادي ، لکه : ملکي ،بياني ،ظرفي ، استعاري او تشبيهي ، لياقت، خاص ته د عام اضافت ، نسبتي ... ( **۳ : ۱۱۷ ـ ۱۱۸**).

**۵ ـ ۷ وتون پېر ، يا منشايي ، يا مفعول منه حالت :** دا معنا چې يو نوم د کار پيليځ ( منشاء) ګرځېدلی وي ، لکه : له کندهاره راغلم ، له ښو ښه زېږي ـ له بدو وابده زېږي . دلته ( کندهاره ، ښو او بدو ) وتون پېر لري (له) لکه د نورو سربلونو او وستربلونو غوندې له اړوند اوښتي نوم ( کندهار ) سره يو (توني) کړول رغوي ( **٦ : ٩۴** ) .

همدغه حالت بيا پښتو ګرامر د ( ارتباطي حالت ) تر سرليک لاندې داسې څېړي :

کله چې یو نوم د ارتباط له اداتو سره استعمال شي او د ارتباط توري ورڅخه مخکې یا وروسته راشي نو هغه نوم ارتباطي حالت لري ، لکه : له کوره راغلم ، بازار ته ځم . په دغو مثالونو کې ( کور ) او (بازار) په ارتباطي حالت کې دي او د ( له ، ته ) اداتو په واسطه د ( راغلم ـ ځم ) له فعلونو سره ارتباط او اړه لري ( **۳ : ۱۱۶** ) .

**۵ ـ ۸ تون پېر یا ظرفي یا مکاني او زماني حالت :** همدارنګه مفعول الیه یا استقامتي او معیتي حالت هغه نوم ، چې د یوه کار ظرف وګرځي او یا پرې یو کار اړه پیداکړي تولنوم بلل کېږي او په دې توګه بدلون مومي . دغه بدلون د (په ـ کې) ، (پر ـ باندې) ، (پر ـ سربېره) (تر ـ لاندې) ، (تر ـ پورې) ، (تر ـ ته) زېږنده ده ، لکه : په کوهي کې ، پرغره باندې ، پر ګټ سربېره ، تر زنې لاندې ، تر غرمې پورې ، تر مازېګره تر کابله ، په تیارې پسې رڼا ده ( **٦ : ۹۴** ) .

پورتنۍ موضوع هم په ښتوګرامر کې د څرګند او مستقیم سرلیک لاندې څېړل شوې نه ده خو په بېلابېلو ځایونو کې ورته اشارې شوې دي . د پورتني سرلیک اړوند ورته مواد په تېرې (۷) ګڼې د (ارتباطي حالت) سرلیک کې روښانه شول .

لاندې مواد هم د پورتني سرلیک اړوند دي ، چې د ښتو ګرامر په بېلابېلو برخو کې راغلي دي :

ښتو ګرامر د ( اضافي ارتباط یا حالت ) په ډولونو کې ( ظرفي اضافي حالت ) داسې ښیي چې یو نوم د بل ظرف واقع شي ظرفي اضافي حالت یې بولي ، لکه : د بوسو کوټه ، د غوړو تیم ، د کوهي اوبه ( **۳ : ۱۱۷** ) .

زماني حالت چې د ښتو ګرامر د نومونو په یو ډول (عام نوم) بیا ددې ډول په یو ډول (د ظرف نوم) په (د زمان ظروفو) تر سرلیک لاندې څېړل شوی دی ، هغه نومونو ته ویل کېږي چې د

وخت او زمان ښکارندوی وي ، لکه : د سهار باران ، د ماښام ستوری ، د مازيگر لمونځ (٦ .(۴۹:

د نوم د حالتونو په څېړنه کې هم دواړو گرامرونو نږدې ورته لار نيولې او ډير توپير نه لري . يوازې دومره توپير لري ، چې په يوه گرامر کې يو حالت په يو ډول او په بل کې په بل ډول څېړل شوی ، يا د نومونو د ډولونو په وېش کې د توپير له امله يو حالت تر يوه سرليک او بل سرليک لاندې راوړل شوي دي . دې موضوعاتو ته ځای ځای اشاره شوې ده . خو ځينې حالتونه داسې هم دي ، چې په يو گرامر کې شته او بل کې نشته ، لکه : د نوم ( مفعولي حالت ) په ښتوگرامر کې شته ، خو په ښتو ښوويه کې يې په اړه څه ونه ليدل شو .

د نوم ( باواسطه مفعولي حالت ) په اړه په ښتو ښوويه کې څرگندونې شوي ، خو ښتو گرامر په دې اړه څه نه ليکي .

## ٦ ـ د نوم اوړون

ښتو نومونه د شکلي بدلون يا اوړون له مخې ، په بله وينا ، په بېلابېلو ځايونو کې د بېلابېلو دريځونو پربنسټ په دوو برخو ويشل کېږي : اوښتونکي او نااوښتونکي .

**٦ ـ ١ اوښتونکي نومونه :** ښتو گرامر اوښتونکي نومونه په لاندې ډول راښيي :

١ ـ هغه نوم ، چې په نرمه (ی) پای ته رسېدلي وي ، درې بڼې لري :

الف : د نداء په حالت کې مفتوح او فتحه يې د پای (هې) په وسيله ښوول کېږي ، لکه : زلميه! سړيه !

ب : د معلوم متعدي ماضي فعل او ارتباطي حالاتو کې د جمعې په بڼه راځي ، يعنې نرمه (ی) يې په څرگنده (ي) بدلېږي ، لکه : زلمی ـ زلمي ، سړی ـ سړي .

ج : په پاتې نورو حالتونو کې په اصلي بڼه استعمالېږي ، لکه : سړی راغی .

يادونه : دغه ډول نومونو کله د ( له ، تر ، بې ) اداتو په داخلېدو هم مفتوح کېږي ، لکه : (له سړيه ـ تر منګيه ، بې سړيه ) .

يادګېرنه

١ ـ متعدي حکمي افعال ، لکه : خندل ، ژړل ، زانګل ، لامبل ، نڅل ، د متعدي افعالو حکم لري او د ماضي فاعل په پای کې يې نوموړی تغير راځي ، لکه : زلمي وخندل ، کوچني هلک وژړل .

٢ ـ هغه صفتونه ، چې په منځ کې يې (و) او ساکنه (ی) وي او جمع يې د جمعې له (٧) مادې سره سمه جوړه شي ، درې بڼې لري :

د نداء په حالت کې مفتوح او په فاعلي او مفعولي حالت کې د جمعې په صورت کې راځي او په پاتې نورو حالتونو کې په اصلي بڼه استعمالېږي ، لکه : ای کونه ! ، زاړه سړي وخندل يو زوړ سړی راغی .

يادونه : کله له ( له ، تر ، بې ) سره هم مفتوح راځي ، لکه : بې پښتونه بل څوک دا کار کولای نه شي  تر کونه خبره ونه رسېده او کله په فاعلي او ارتباطي حالت کې هم په اصلي بڼه استعمالېږي ، لکه : کوڼ خبره وانهورېده ، دغه ړوند ته امسا ورکړه .

همدارنګه د ( خوږ ، سور ، تود ، اوم ، خوشت ، اوږد ، زرغون ، سور ، شين ) صفتونه هم کله په فاعلي ارتباطي حالت کې د جمعې په بڼه راځي ، لکه : د خواږه شي خوراک مزه لري له تاوده اوره مه ځه ، د اومه کتغ خوند نه وي ، په سره رنګ ښه کار نه کېږي .

٣ ـ هغه نارينه نومونه ، چې منځنی (و) ولري او جمع يې په پای کې د (ونه) په زياتولو سره جوړېږي  د نداء په حالت کې مفتوح او په فاعلي او ارتباطي حالت کې يې (و) په (الف) اوړي او په پای کې يې وره (هې) زياتېږي او په پاتې نورو حالتونو کې په اصلي بڼه استعمالېږي ، خو په دغه حکم کې د استعمال له مخې دا لاندې نومونه شامل دي : ( ژوندون کهول ، لړمون زنګون ، بېلتون ... . لکه : بېلتونه رامشې! بېلتانه ونتلم ، زنګون مې خوږ شو .

يادونه : په ( تربور ) کې (و) له منځه ځي او په پای کې (هې) ورزياتېږي ، لکه : تربره ته څه مه وايه همدارنګه دغه نومونه زياتره په ( له ، تر ، بې ) هم مفتوح کېږي ، لکه : له ژوندونه بل شی خوږ نشته له لړمونه مې اور خېږي ، دا اوږه تر تنوره يوسه او کله کله په فاعلي او ارتباطي حالت کې هم په اصلي بڼه استعمالېږي ، لکه : په تنور کې ډوډۍ پرېوته بېلتون وځپلم او نور .

يادګېرنه

د ( کور ـ کاله ـ کره ) کلمې که څه هم ټولې په يوه معنا دي ، خو په استعمال کې زيات توپير لري ، نو لاندې يې استعمال ته يوه اشاره کوو :

الف ـ کور : په ندايي حالت کې د ( له ، تر ، بې ) له اداتو سره مفتوح راځي ، لکه : ای کوره! له کوره راغلم ، بې کوره سړی دی ، تر کوره پورې ځم او پاتې جملو کې په اصلي بڼه دی ، لکه: کور پرېشانه کړی يم ، په کور کې ځوک نشته او نور .

ب ـ کاله : دغه کلمه په ندايي ، ارتباطي او فاعلي حالت کې استعمال شوې ده او په بل حالت کې نه استعمالېږي . لکه : ای کاله ! کوره ! له کاله راغلم ، تر کاله پورې ځم ، کاله ته ځم ، د کاله اسباب مې نشته ، کاله حيران کړی يم .

ج ـ کره : د کور بله بڼه ده او په ځانګړې توګه په يو حالت ، يعنې ظرفي اضافي حالت کې استعمالېږي او تل لازم الاضافه دی ، يعنې کره د يو فعل د ظرفيت سره تل مضاف راځي ، لکه : د سليم کره ځم ، د حميد کره مېلمه يم .

۴ ـ هغه نوم او صفت ، چې په صحيح توري پای ته رسېدلی وي او جمع يې د جمعې د قانون له لسمې مادې سره سم په وروه (هې) جوړېږي ، هم درې بڼې لري : په ندايي حالت کې په پای کې فتحه ، چې په (هې) سره ليکل کېږي ، زياتېږي او په فاعلي او ارتباطي حالت کې د جمعې په بڼه بدلېږي او په پاتې نورو حالتونو کې په اصلي بڼه استعمالېږي ، لکه : ای غله دلته راشه ! غله وشوکاوه ، غل وتښتېد.

يادونه : کله کله په فاعلي او ارتباطي حالت کې هم په اصلي بڼه راځي ، لکه : د پړ سړي رنګ معلوم وي ، غل په غل پوهېږي ـ مل په مل .

۵ ـ هغه نوم ، چې په صحيح توري پای ته رسېدلی وي او جمع يې د جمعې د قانون له (۱۰) او (۱۱) مادې سره سم په (ان او ونه) جوړېږي ، دوه بڼې لري : د نداء په حالت کې او د ( نا ، له ، تر ، بې) له اداتو سره مفتوح او په فاعلي ، ارتباطي او نورو حالتونو کې په اصلي بڼه راځي ، لکه : پلاره راشه ! ناشکره سړی دی ، پلار وواهه ، په دېوال مه خېږه ، د عقل خاوند ، په حال يې خبر نه شوم .

يادونه : د ( زوی ، توی ، سوی ، لوی ) نومونه او همدارنګه ( منډو ، کنډو ، پلو ، لو ) او نور چې ټول نارينه دي او په صحيح توريو د پای ته رسېدلو نومونو په څېر دي او يو حکم لري . يعنې د نداء په حالت کې او د ( له ، تر ، بې ) له اداتو سره مفتوح او په نورو پاتې حالتونو کې په اصلي بڼه استعمالېږي لکه : ای زويه ! دلته راشه ! دا سړی بې زويه دی، له پردي زويه خپله لور ښه ده ، لمر له کنډوه واوښت لمر تر کنډوه تېر شو .

٦ ـ هغه نوم ، چې په ښځينه (هې) پای ته رسېدلي وي ، دوه صورته لري : په ندايي ، فاعلي او ارتباطي حالتونو کې د جمعې په بڼه راځي او په نورو حالتونو کې په اصلي بڼه استعمالېږي. معنوي مونثات ، چې اصلاً ښځينه (هې) لري ، هم په دې ډول دي ، لکه : ای ښځې ته څوک يې ؟ چرګې دانې وخوړې. له کوټې څخه ووځه! کښه ښځه څه نه اوري .

يادونه : يواځې (په) له ( کې او باندې ) سره په عمل کې کمزوري دي او په ځينو نومونو کې بدلون راولي ، لکه : حميد په کوټه کې ناست دی ، دا کار په يوه مياشت کې نه خلاصېږي په ګوډه پښه مزل نه کېږي .

۷ ـ هغه نوم ، چې په څرګنده ښځينه (ی) پای ته رسېدلی وي او جمع يې په زورکي واله (ۍ) سره کېږي ، لکه : غريبي ، چې جمع يې غريبۍ ده ، هم دوه بڼې لري : په ندايي ، فاعلي او

ارتباطي حالت کې د جمع په صورت او په نورو حالتونو کې په اصلي بڼه راځي ، لکه : ای غریبې ! څه درسره وکړم ، غلیمې برباد کړم ، په بیاتي څه کوې ؟ زموږ دوستي کلکه ده.

۸ ـ هغه معنوي مونثات ، چې په صحیح توري پای ته رسېدلي وي ، درې بڼې لري : د نداء په حالت کې یې له پای سره څرګنده (ي) یا اوږده (ې) او د ( له ، بې ، تر )له اداتو سره مفتوح راځي او په پاتې نورو حالتونو کې په اصلي بڼه استعمالېږي ، لکه : یه مورې ! دا هلک بې موره دی ، د مور حق پر هرچا شته. خو د ( تندار او ورندار ) په نومونو کې په ارتباطي او فاعلي حالت کې هم اوږده (ې) راوړل کېږي  لکه : له تنداري څخه دې اوړه راوړه ! ورنداري ته دې څه مه وایه ! مسکا خپلې ورنداري بوتله او (نجل) په ټولو حالتونو کې یو ډول استعمالېږي ، لکه : نجل دلته راشه ! د نجل په سر کې ګلونه دي .

یادونه : هر نوم ، چې په پای کې یې ( نه ، څخه ، ځینې ) جوخت راځي ، په هغه صورت کې په اصلي بڼه استعمال شوی او پای یې نه مفتوح کېږي . ځکه ، چې نوموړي ادات د فتحې ځای نیونکي ګڼل کېږي ، لکه : له ترور څخه دې پوښتنه وکړه ! له کور نه بهر مه ځه ! له پلار نه دې مه خپه کېږه ! .

۹ ـ هغه نارینه نومونه ، چې په څرګندې ( ي ) پای ته رسېدلي وي ، په ندایي ، فاعلي او ارتباطي حالت کې یې (ي) په اوږد (و) بدلېږي او په پاتې نورو حالتونو کې پخپله اصلي بڼه راځي ، لکه : ای سړو ! دغو سړو ته غوږ وکړه ، رحیم او کریم دواړه ښه سړي دي .

یادونه : کله کله د التباس په وخت کې (ی) په (و) نه بدلېږي ، بلکې له پای سره یې (و) ورزیاتېږي او (ی) په پېښې ویل کېږي ، لکه: خپل عیب د ولیو منځ دی او که چېرې نوموړي نومونه د ( څو او عدد ) مدخول واقع شي ، احیاناً مفتوح راځي ، لکه : څو لرګیه ، څو سړیه دې په کار دي ؟ پنځه سړیه راکړه!

۱۰ـ هغه نارینه جمع او جنس نوم ، چې په (هې) پای ته رسېدلی وي ، په ندایي ، فاعلي او ارتباطي حالت کې یې (هې) په اوږد (و) بدلېږي او د منځ ( الف) له منځه ځي او په پاتې

حالتونو کې پخپله بڼه استعمالېږي ، لکه : ای مېلمنو ! شپنو خپلې رمې بوتلې ، د اوړو قيمت ، مېلمانه راغلل .

يادونه : هغه نومونه ، چې په (ونه) جمع کېږي په ځينو محاورو کې په فاعلي ، ارتباطي او ندايي حالتونو کې (نه) تخفيفاً له منځه ځي او يواځې اوږد (و) په پای کې پاتېږي ، لکه : په لاسونو کار کېږي ، په قلمو ليک کېږي ، ای وربېرو ! خو که (نه) حذف نه کړای شي په پای کې ورسره څرگند (و) يوځای کېږي او که چېرې پورتني نومونه د ( ځو او شمېر) مدخول واقع شي ، احياناً (ونه) حذف او په پای کې يې (هې) يوځای کېږي ، لکه : څو قلمه ، څو کتابه ، څو کته ، څو سره مال لري ، پنځه قلمه ، پنځه کتابه ، شپږ سره مال لرم . په يو ځپيز او دوه ځپيز نومونو کې نومورې تخفيف زيات دی .

۱۱ـ هغه نارينه جمع او جنس نومونه ، چې په صحيح توري پای ته رسېدلي وي ، په فاعلي ندايي او ارتباطي حالت کې يې په پای کې (و) راوړل کېږي او په نورو حالتونو کې يې استعمال پخپله بڼه دی  لکه : ای هلکانو کار وکړئ ! هلکانو منډه وکړه ، د اوښانو خوراک ځوز دی هلکان سبق وايي .

يادونه : هغه گډ صفتونه ، چې په څرگنده (هې) پای ته رسېدلي وي ، د جمعې په وخت کې په درې گونو حالتونو کې (و) زياتېږي ، لکه : ای نارينه و ! تکړه خلکو ته هر څه اسان دي د جمله و محلوقاتو پلار دی . دا  او کله د (و) له زياتوالي څخه پرته هم استعمالېږي ، لکه : د ساده کسانو په خوله مه ځه !

۱۲ـ هغه ښځينه جمع ، چې په (ی) پای ته رسېدلي وي ، دوه صورته لري : په ندايي ، فاعلي او ارتباطي حالت کې يې (ی) په (و) اوړي او په پاتې نورو حالتونو کې پخپله اصلي بڼه راځي ، لکه : ميندو ! خويندو! دې ښځو جامې ووينځلي ، دا سړی د ځمکو خاوند دی ورځې ډېرې تېرې شوې .

۱۳ـ هغه ښځینه جمعې ، چې په درنه (ې) پای ته رسېدلي وي په ندایي ، فاعلي او ارتباطي حالت کې یې په پای کې (و) راوړل کېږي او په پاتې نورو حالتونو کې پخپله اصلي بڼه راځي لکه : ای لیونو ښځو ! لیونیو ښځو جګړه وکړه ، د ګولیو باران دی ، هېلۍ راغلې دي .

یادونه : ځینې په پورتنیو نومونو کې (ی) هم له منځه وړي ، لکه : رنګمال څوکیو ته رنګ ورکوي او نور.

یادښت : ځینې صفتونه که څه هم جمع ونه لري ، په هغه صورت کې ، چې موصوف یې جمع وي او ورڅخه مقصد د جمع صفت وي په ندایي ، فاعلي او ارتباطي درې ګونو حالتونو کې یې په پای کې یې (و) زیاتېږي ، لکه : ای غمجنو ! د ښو خلکو ښه کارونه په سپکو سپک ( **۳ : ۱۱۹ ـ ۱۳۲** ) .

پښتو پښویه د اوښتونکو نومونو په اړه لیکي :

که یو نوم په بېلابېلو حالتونو کې خپلې بڼې ته بدلون ورکړی وي ، اوښتی نوم بلل کېږي ، یا په بله وینا: هغه نوم اوښتی پېر ( مغیره حالت ) لري او که اوښتنه یې نه وي موندلې ، نو آر نوم ورته وایي او حالت یې آر پېر ( اصلي حالت ) دی .

۱ـ د نوم پېر ( اسمي حالت ) ځینې نښې یا پایلې له ګڼې (جمع ) هغو سره سمون لري ، لکه:
زلمی ـ زلمي پلوشه ـ د پلوشې ، شپون ـ د شپانه ، غل ـ د غله ... .

۲ـ ډېرګړي (جمع ) نومونه بیا په یو مخیز ډول اوښتی پېر په (و) ښیي ، لکه : د ښځو ، سړیو هلکانو خویندو ، برېښناګانو ... . یوه نیمه بېدودي ، لکه : په سل کې ، یا : د پلاني په ویل او کول کې توپیر نشته .

په دې توګه په ( ان ، ګان ، ي ، وې ، ونه ، انې ، ګانې ، یندې او د دوی په نورو همپازو روستاړو جمع کېدونکي نرینه او ښځینه نومونه له ( تونپېر) ، ( وتون پېر ) او ( بلن پېر ) او څه ناڅه تونپېر پرته نوره اوښتنه نه لري ، البته په (وتون ) او ( بلن پېر کې بېواکپای نومونه خپل

پای په ( زورونو) يا ( فتحو) او ( زېرونو ) روستاړي کوي ، لکه : يه هلکه ! يه مورې! له ( هلکه ) له ( موره ) ، تر کوره ، تر موره.

لکه څنګه چې پاس وليدل شول او وروسته د سربلو ـ اوستربلو په برخه کې هم څرګندتيا مومي بشپړ ډېری سربلونه او اوستربلونه له يو لړ کم ـ اوښتي نومونو پرته نور هر راز نومونه ( ځيزنومونه ستاينومونه نومځري ، شمېرنومونه ) اړوي ، لکه په دې فارمول کې :

زه ، ته ، دی ، دا ، څوک ، سړی ، ښځه ، خپلوي ، پښتون ، هلکان ( او بل هر ډېرګړی ) ... + سربلونه او اوستربلونه او همداراز بلنپېر تېر لېږند يا غبرګون ، کړند پېر او برخيز ( وسمهال کړی پېر (ما) ، ( تا) = ما تا ( د وسمهال کړي پېر يا مفعوليت په ګډون ) ، ده ، دې ، چا سړي ښځې ، خپلوی پښتنو ، هلکانو( او بل هر ډېرګړی ) له ( ـ و ) پايلې سره **( ٦ : ٩٤ ـ ٩٥) .**

د اوښتونکو نومونو په څېړنه کې هم ، په دواړو ګرامرونو کې ، کوم ستر معنوي بدلون او توپير نه ترسترګو کېږي ، يواځې شکل او بڼه يې توپير لري ، بلخوا د دواړو ګرامرونو په څېړندود کې د توپير له امله هم پښتو ګرامر په يوه لاره او پښتو پښوويې په بله لاره موضوعات روښانه کړي دي . پښتو ګرامر ډېر تشريحات او جزيات لري ، د يوه نوم د بدلون بېلابېل ځايونه ښوول شوي ډېرې بېلګې يې ورکړې چې ګټورې او بې اړتيا نه برېښي .

د دې پر وړاندې ، پښتو پښوويې ، د تېر په څېر بياهم ټول مسايل فورمولتيک کړي ، د ګرامر پراخه څرګندونې او تشريحات يې راټول او په لنډ ډول بيان کړي دي . د پښتو پښوويې څرګندونې او تشريحات د کلماتو او جملو په تناسب له پښتو ګرامر لږ دي ، خو معنوي اړخ يې تر پښتو ګرامر کمزوری نه دی .

**٦ ـ ٢ نه اوښتونکي نومونه :** په پښتو کې ځينې داسې نومونه هم شته ، چې په بېلابېلو دريځونو او ځايونو کې شکلي يا لفظي بدلون نه مني او نه اوړي ، چې نښې يې په لاندې ډول دي :

پښتو ګرامر په دې اړه ليکي :

۱ـ هغه نومونه ، چې په (الف) پای ته رسېدلي وي ، لکه : ای کاکا ! کاکا ووهلم ، دا د برېښنا شرکت دی .

۲ ـ هغه نومونه ، چې په وړه (هې) پای ته رسېدلي وي ، لکه : ای تره ! تره ووهلم ، د تره کره ځم .

۳ ـ هغه نارينه نومونه ، چې په څرگنده (هې) پای ته رسېدلي وي ، لکه : ساده هلکه ! مېلمه ډوډۍ وخوړه ، له مېلمه سره يو ساعت کښېنه !

۴ ـ هغه نوم ، چې په پای کې (و) وي ، لکه : ای ښارو ! ، پېشو غوښه وخوړه ، له زانگو څخه ولوېد خيټو ډېره ډوډۍ وخوړه ، د خيټو له کوره راغلم ، په کندو کې داني واچوه .

۵ ـ هغه نوم ، چې په زورکي واله (ۍ) پای ته رسېدلی وي ، لکه : ای نجلۍ ! ږلۍ فصل خراب کړی په څوکۍ کښېنه !

٦ ـ هغه نومونه ، چې په اوږده (ې) پای ته رسېدلي وي ، لکه : ای ادې ! ادې ووهلم ، له ادې سره لاړه.

۷ ـ هغه نارينه نومونه ، چې په څرگنده (ي) پای ته رسېدلي وي ، لکه : ای دوبي ! دوبي جامې ووينځلې په موچي څپلۍ جوړوم .

۸ ـ هغه ښځينه نومونه ، چې په څرگنده (ي) پای ته رسېدلي وي ، لکه : ای مامي ! مامي ووهلم ملالۍ له مامي سره ولاړه ( ۳ : ۱۳۳ ـ ۱۳۴) .

پښتو پښويه په دې اړه ليکي :

ځيني داسې نومونه شته ، چې په يوگړي بڼه په پېرونو کې کوم جوليز اوښتون نه مومي ، بلکې ځيني يواځې په وتون پېر او بلنپېر او يو څه تون پېر کې اوښتون مومي او هغه دادي :

۱ـ الف ـ پاينومونه : لکه : کاکا ، ملا ، دادا ، پښتيانا ، اريانا ، پکتيا ، سبا ، يما ، کنېشکا لوړتيا او ... چې په اتو واړو پېرونو کې اوښتون نه مومي .

۲ ـ و ـ پای نومونه : (لنډ یا اوږد) ، لکه : زانگو ، بیزو ، درخو ، ټټو .

۳ ـ ۍ ـ پای نومونه : لکه : نجلۍ ، لېونۍ ، څوکۍ ، سپوږمۍ .

۴ ـ زورکی پای نرینه نومونه : لکه : نیکه ، تره ، زړه ، وراره ، مرغه ، واده ... .

۵ ـ ځینې زورپای ( ستای ـ ) نومونه : چې هم ښځینه کارېږي او هم نرینه او څه ناڅه له پارسۍ سره گډون لري ، لکه : ډاډه ، ښایسته ، ساده ، پیاده ، شهزاده ، مېلمه ، کوربه ، غوبه. دلته یواځې ځینې نرینه انډول ښځینه نومونو بدلون مومي ، لکه : شهزادگۍ ، مېلمنې کوربنې غوبنې .

٦ ـ زیاتره بېواکپای ښځینه نومونه ، لکه : یه مورې ! یه ترورې ! یه خورې ! له موره ، له تروره . ...

٧ ـ وی ـ غبرگغږپای نومونه ، لکه : یه زویه ! یه پوهندویه ! یه ساتندویه ! لویه ! بویه ! خویه! له زویه! له پوهندویه ... .

٨ ـ ټول زور ـ پای یوگړي ښځینه نومونه د (په) او (په ـ کې ) په ملتیا ناوړیدوني پاتې کېږي ، لکه : په چاړه یا په چړه ، په کوټه کې ، او داسې نور ( **٦ : ٩٥ ـ ٩٦** ) .

د ناوښتونکو نومونو په څېړنه کې هم د دواړو گرامرونو ترمنځ تر ډېره همغږي شته ، دلته د دواړو گرامرونو څېړندود هم نږدې یو شوی دی ، موضوعات یې په لنډ ډول تشریح کړي . دواړو په (الف ، ي لنډ او اوږد (و) ، ۍ ، ې او زورکي ) پای نومونه ناوښتونکي ښوولي دي . خو پښتو پښویه کې ځینې داسې مسایل راغلي ، چې د پام وړ دي .

## ۷ ـ د نومونو څلورگونې ډلې

نوم په څلورگونو ډلو وېشل او په دې وسیله هغه تر ( خیزنوم ، ستاینوم ، نومځري او شمېرنوم ) لاندې څېړل ، په پښتو پښویه کې ترتیب شوي ، خو پښتو گرامر بیا دا ډول نه کوي او نوم د ( ستاینوم نومځري او ... ) ترڅنگ د کلام د اجزاوو تر سرلیک لاندې څېړي . شمېرنوم د

ستاينوم تر سرليک لاندې څېړي ، په دې معنا ، چې شمېرنوم د ستاينوم يوه برخه بولي ، نه د نوم  يا کلام د يوې خپلواکې برخې په توگه .

بلخوا پښتو گرامر نوم د پينځو (مفهوم ، جوړښت ، کيفيت ، کميت ، د فعليت او نافعليت) اړخونو نه څېړي او بېلابېل ډولونه يې ورته ټاکلي دي ، چې دغه ډول وېشنه بيا په پښتو پښويه کې نشته.

په پښتو گرامر کې د نوم وېشنې ته لنډه او ځغلنده کتنه کوو :

لومړی ـ د مفهوم او معنا له مخې د نوم ډولونه :

١ . خاص نوم : ( محض نوم ، لقب ، عرف ، تخلص )

٢ . عام نوم : ( د ظرف نوم ، د تصغير نوم ، د صوت نوم ، د آلې نوم ، فعلي نوم )

٣ . د جنس نوم : ( غلې دانې ، ونې او مېوې ، مايعات او نرم شيان )

۴ . د ټولي ( جمعيت ) نوم :

٥ . مجرد نوم :

دويم ـ د جوړښت له مخې د نوم ډولونه :

١ . ساده نوم :

٢ . مرکب نوم :

دريم ـ د کيفيت له مخې د نوم ډولونه :

١ . نارينه :

٢ . ښځينه :

څلورم ـ د شمېر له مخې د نوم ډولونه :

١ . مفرد :

٢ . جمع :

پينځم ـ د فعليت او نافعليت له مخې د نوم ډولونه :

۱ . فعلي :

۲ . غیرفعلي :

د پورتنۍ لنډې یادونې نه وروسته بیرته خپلې اصلي موضوع ته ځو او د نومونو له څلورگونو ډلو لومړی یې څېړو :

## ۷ ـ ۱ څیزنوم ( اسم )

په دې اړه په پښتو گرامر کې څه نشته ، خو پښتو پښویه یې داسې راپیژني :

هغه نوم ، چې نیغ په نیغه د یوه څیز یا ښکارندې نومونه او څرگندونه کوي .

۷ ـ ۱ ـ ۱ **د څیزنوم ډولونه**

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۱ ذات نوم** : په یو حس کېدونکي څیز اړه لري . یا په بله وینا ، داسې یو څیز نوموي چې زموږ په حواسو حس کېدای شي ، لکه : ډبره ، لرگی ، اوبه ، هوا .

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۲ معنا نوم** : په یوه نامحسوس څیز ، یا په بله وینا ، په یوې پدیدې پورې اړه لري او هغه نوموي ، لکه : ښایسته ، روغتیا ، هیله ، ننگ ، پت ، مېړانه .

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۳ خاص نوم** : یو ځانگړی څیز ، پدېده ، خلک یا ځای نوموي ، لکه : پښتو ژبه ، پښتونواله زرمینه ، ننگرهار ، هند ، ایران ... .

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۴ عام نوم** : داسې څیز یا پدیده نوموي ، چې ځانگړی او خاص نه وي ، بلکې ډولونه او ځیلونه لري ، په بله وینا ، په یوې همرنگې ډلې اړه لري او د نومېرنې لپاره له (کوم ؟) یا ( کوم یو ؟) پوښتنې سره مخامخېږي لکه : ونه ، هلک ، هېواد .

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۵ جنس نوم** : په یوه نه شمېرېدونکي څیز اړه لري ، لکه : زر ، اوبه ، غنم کوچ . یو لړ جنس نومونه ، چې ښځینه پایلې لري او بې له دې ، چې شمېر وړ اوسي ، د یوگړي په توگه کارول کېږي او له دې سره د نورو نومونو غوندې د ډېرگړي او پېر پایلې هم راخپلوي لکه : وسپنه خټه ، بوره ، شکره خاوره ، ایره ... . که یو جنس نوم ډولونه ولري نو بیا هم ډېرگړي او شمېر وړ کېدای شي ، لکه : ویتامین (ویتامینونه) ، درمل ( درملونه ) واکسین (واکسینونه).

هرگوره ، جنس نومونو نرینه او ښځینه توپیر د پایلو له مخې کېږي . نرینه ، لکه : غنم ، غوړي سابه ښځینه ، لکه : اوبه ، اوربشې ، نکریزې ، شودې ، مستې ، چې لهجوي بڼه یې (شوده) او (ماسته) جمع نرینه راځي.

یو نیم جمع جنس نوم پر مفرد هم اړول کېږي ، لکه : د غزني غوړی ښه دی ، د کوندوز اوبه ښه ده ... غنمان ، توتان ... بیا د ډېرښت لپاره هم ویل کېږي .

۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ٦ **جمع نوم** : یوه ډله او غونډ نوموي ، لکه : ټولنه ، ټبر ، ټولی ، ټولگی ، لوبډله گوند سازمان ولس ، گورم (پاده ) ، رمه .

۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۷ **مصغر نوم** : چې له مانیز یا توکیز پلوه د اړوند نوملي یا صفت د کچې یا ارزښت د ټیټوالي یا کموالي او یا هم سپکاوي ښکارندویي کوي ، چې له نورو نومونو سره یې رغښتي او جولیز توپیر د اړوند روستاړي له مخې کېږي ، لکه : هلکوټی ، نجلوټې ، کورگی ، وړوکی ، ښایستوکی ، مرچک ،خورکه مورکه ... چې کله کله د گرانښت په موخه هم کارول کېږي .

۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۸ **صوت نوم** : د طبیعي یا مصنوعي غږونو یا شور وځوږ پېښې نوموي ، لکه : درز دروز درزی ، درزا ، درزهار ، گړب ، گړوب ، ترپ ، تروپ ( ۵ : ۹٦ ـ ۹۸ ) .

پښتو گرامر د پورتنیو ځینو نوم ډولونو په اړه ، چې د ( معنا او مفهوم له مخې د نوم ډولونه ) تر سرلیک لاندې یې څېړلي ، داسې لیکي:

۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۹ **خاص نوم** : خاص نوم هغه دی ، چې یو خاص شخص یا خاص شی معرفي کوي او یواځې پر یوه ټاکلي فرد دلالت کوي ، لکه : کابل ، افغانستان ، سپین غر .

خاص نوم په پښتو کې د اشخاصو ، ښارونو ، غرونو ، سیندونو ، هېوادونو او نورو لپاره استعمالېږي، خو د اشخاصو خاص نوم د استعمال له مخې څو ډولونه هم لري ، چې په لاندې توگه ښودل کېږي :

الف ـ محض نوم : هغه نوم دی ، چې د زېږېدنې پر وخت یو چا ته وضع شوی وي ، لکه : حمید غرغښت او نور .

ب ـ لقب : هغه نوم دی ، چې د یو صفت یا خصوصیت له مخې د درناوي په توګه چاته ورکړل شوی وي او پر هغې مشهور شوی وي ، لکه : میاګل ، لالی .

ج ـ عرف : لنډ نوم دی ، چې د مینې یا حقارت له مخې عرفاً استعمالېږی ، لکه : جانو ، ګلو ، شینو او نور .

د ـ تخلص : لنډ نوم دی ، چې شاعران او لیکوال یې د ځان لپاره ټاکي ، لکه : شیدا ، هجري خادم ....

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۱۰ جنس نوم** : هغه نوم دی ، چې د خپل همجنس په لږو او ډېرو باندې یو شان دلالت وکړي . د جنس نوم یې بولي ، یعنې د جنس نوم د لږ او ډېر شي لپاره یو ډول استعمالېږي ، لکه : کوچ بوس ، غنم ، اوبه ، مالوچ ، غوړي ... .

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۱۱ ټولی ( جمعیت ) نوم** : هغه نوم ، چې صورتاً مفرد او په معنا کې د اشخاصو او د شیانو په یوې ډلې باندې دلالت کوي ، د جمعیت نوم ورته وایي . یعنې د جمعیت نوم په هغه مفرد لفظ دلالت کوي ، چې د جمعې معنا ترې اخیستل کېږي ، لکه: ډله ، لښکر ، کنډک ، ټولی ، غونډ ، رمه ، جرګه قوم ، ولس ... .

یادونه : کوم توپیر ، چې د جنس نوم او جمعیت نوم ترمنځ شته ، هغه دادی ، چې لومړنی غالباً جمع نه لري او د لږو ډېر لپاره یو ډول استعمالېږي او دویم د ډېرو جمعیتونو په اعتبار جمع کېږي ، لکه : ډلې لښکرې او نور .

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۱۲ مجرد نوم** : مجرد نوم هغه دی ، چې مادي وجود ونه لري او په سترګو نه لیدل کېږي او شته والی یې په غیر پورې اړه لري ، لکه : عقل ، پوهه ، خیال ، ویره ، پرېکړه.

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۱۳ عام نوم** : هغه نوم ، چې یو نامعلوم شی معرفي کوي او پرخپلو افرادو یو شان دلالت وکړي عام نوم دی ، لکه : سړی ، آس .

عام نوم ډېر ډولونه لري او هغه دادي :

۱ ـ د ظرف نوم .

۲ ـ د تصغیر نوم .

۳ ـ د صوت نوم .

۴ ـ د آلې نوم .

۵ ـ فعلي نوم .

تبصره : ځینې صرف پوهان ، نوم لومړی په ذات نوم او مجرد نوم ویشي . ذات نوم هغه دی چې په خارج کې مستقل مادي وجود ولري ، لکه : لرګی ، غنم ، سړی .

نو په دې صورت کې کولای شو ، چې د جنس نوم د جمعیت نوم ، د ظرف نوم ، د تصغیر نوم آلې نوم د ذات نوم له ډولونو او فعلي نوم (مصدر) د فعلي کیفیت نوم (حاصل مصدر) او د صوت نوم د مجرد نوم له ډولونو څخه وګڼو ، همدارنګه ځینې د زمان ظروف هم د مجرد نوم له ډولونو څخه بولي .

### ۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۱۴د ظرف نوم

د عام نوم یو ډول دی او په ظرف مکان او ظرف زمان ویشل کېږي :

الف ـ ظرف مکان : د فعلونو د پېښېدو څخه او یا په بل عبارت ځای نومونو ته اسم مکان وایي دا په دوه ډوله دی :

۱ ـ ساده ، بسیط : هغه ، چې یو توکی ( جز ) وي او په مفرده توګه اورېدل شوی وي ، زیاتره یې دادي: پورته ، ښکته ، وروسته ، وړاندې ، لرې ، نژدې ، کوز ... .

۲ ـ مرکب نوم : هغه ، چې له دوه او یا له دې څخه د زیاتو توکو نه جوړ شوی او ترکیب شوی وي ، په دوه ډوله دی :

لومړی هغه ، چې له دوو خپلواکو ، یا یوې خپلواکې او بلې ناخپلواکې کلمې څخه ترکیب او د نامحدود ځای نوم وي ، لکه : ښې خوا ، کیڼ خوا ، ښې لور ، شاته .

دويم هغه دی ، چې د اداتو او علامو له يو ځای کېدو څخه جوړ شوی او يو محدود ځای ښيي. دغه ډول مکاني ظروف له قياسي او قانوني ظروفو څخه شمېرل کېږي ، لکه : ځی ، تون ، غالی ، گره ، جل خونه يا کوټه .

ب ـ زماني ظروف : د وخت او زمانې نومونو ته زماني ظروف وايي ، زماني ظروف هم په ساده او مرکبو ويشل کېږي ، خو زياتره يې سماعي دي ، د وخت نوم د جوړولو لپاره د ځای نوم په څېر زياتې نښې او قانوني ادات نشته ، يواځې د ( مال يا مهال ) په يوځای کولو سره په پښتو کې ځينې زماني ظروف جوړ شوي دي ، لکه : مانځه مال ، ډوډۍ مال ، چرگ غږ مال ، نمرخاته مال .

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۱۵ تصغير او تحبيب** : تصغير د يوشي وړوکی ښودل او تحبيب له هغه سره مينه لرلو ته وايي . په پښتو کې يو شمېر ادات او نښې شته ، چې د نومونو او صفتونو په پای کې راوړل کېږي ، چې په ځينو ځايونو کې معنوي تصغير ، يعنې سپکاوی او توبيخ او په ځينو نومونو کې ظاهري او جسمي تصغير او په ځينو کې د مينې ، محبت او درنښت څرگندونه کوي .

**۷ ـ ۱ ـ ۱ـ ۱٦ صوت نوم** : هغه الفاظ ، چې د حيواناتو يا شيانو د آوازونو نوم وي او هغه وښيي د صوت نوم ورته ويل کېږي ، دا په دوه ډوله دی :

۱ـ ساده او مفرد : هغه ، چې يو توکی وي ، لکه : درب ، غپ .

۲ ـ مرکب : هغه دی چې له دوو توکو څخه جوړ شوی وي ، چې لومړنی توکی يې ساده نوم او دويم توکی يې د ( ا ، ی ، هار ، کی ) علامې وي ، لکه : ( دربی ، دربا ، دربهار ، او ښنکی) چې د نومړو نښو په يوځای کېدلو سره له ( درب او ښن ) سره مرکب شوی دی **(۳ : ۴۰ ـ ٦۱)** .

وړاندې مو يادونه وکړه ، چې د نوم او د هغې د ډلو او ډولونو په اړه ، د پښتو گرامر او پښتو پښوونې په څېړنه کې توپير شته ، گرامر نوم ( د معنا ، جوړښت ، کيفيت ، شمېر ، فعليت او

نافعليت ) له مخې په بېلابېلو ډولونو ویشي ، خو پښتو پښويه ، چې د يوه جلا ميتود له لارې د نوم تر سرليک لاندې کوم بحثونه کړي ، له گرامر سره بشپړ اړخ نه لگوي .

پښتو پښويه ښځينه او نارينه نومونه راښيي ، خو د ( کيفيت ) تر سرليک لاندې نه ، د نوم وېش د جوړښت له مخې ، د نوم وېش د شمېر له مخې ، د معنا له مخې او د فعليت او نا فعليت له مخې د نومونو وېش . داسې وېشنه په پښتو پښويه کې نشته . د گرامر په ويشنو کې ځينې راغلي مسايل تر بحث لاندې نيول شوي ، خو ټول نه او نه په هغه ډول .

پښتو گرامر ، چې د ( مفهوم او معنا له مخې د نوم ډولونه ) تر سرليک لاندې کوم نومونه راپېژندلي پښتو پښويې د ( خيزنوم ډولونه ) تر سرليک لاندې راښوولي دي ، توپير يې دا دی چې ځينې نومونه  چې په پښتو پښويه کې په خپلواکه توگه د ( خيزنوم ) دډولونو په ترڅ کې څېړل شوي ، پښتو گرامر د (عام) نوم په ډولونو کې راوستي دي ، لکه : مصغر او صوت نوم . د دې ترڅنگ (معنا) نوم په پښتو گرامر کې د ( مجرد) نوم تر سرليک لاندې څېړل شوی دی .

پښتو گرامر د نومونو ځينې ډولونه ښوولي ، چې پښتو پښويې هېڅ پرې بحث کړی نه دی يا يې بل ځای څېړلي دي ، لکه : پښتو گرامر د (خاص نوم ) په ډول کې د اشخاصو لپاره درې نور ډولونه ( محض ، لقب او تخلص ) په گوته کړي ، چې پښتو پښويه يې په اړه څه نه ليکي .

پښتو گرامر د (عام) نوم ډولونه ( د ظرف ، د تصغير ، د صوت ، د آلې او فعلي ) نومونه ليکلي چې پښتو پښويې يواځې په ( مصغر او صوت ) نومونو بحث کړی او په نورو يې دلته بحث کړی نه دی  بلکې د (ظرف) نوم يې په قيدونو ، د (آلې) نوم يې په حالتونو ( آلي حالت ) او (فعلي) نوم يې د فعل په بحث کې رااخيستي دي .

## ۷ ـ ۲ ستاينوم

هغـه کلمه ده چې د يو نوم حالت ، خرنگوالی ، کميت او اندازه بيانوي ، لکه : ښه ، تور ( ۳ : ۱۷۳ ).

ستاينوم په خپلواک ډول څه نه نوموي ، بلکې د يو څه څرنګوالى نوموي ؛ يا په بله وينا ، يو ستاينوم په يوه څيزنوم آړه لري . هغه ټاکي او څرنګوالى يې ښيي ، لکه : تود ، سوړ ، غټ ووړ ، تور ، سور ، ښکلى ښايسته ، غښتلى ، کمزوری ، روغ ، ناروغ ... .

ستاينومونه ، په تېره په ډېرګړي بڼه لږو ډېر د څيزنوم چار يا دريځ راخپلواى شي ، لکه : د لوی وهل دواړه کنځل ، غټان غټان ـ لويان لويان پيدادي ... (اجمل ختټک) او دغه کړن ته چې ستاينوم ، نومځرى يا بل هر ويى چې د څيزنوم چار غوره کوي (substanitivisation) وايي د ويي رغاونې له پلوه يوګړي ښځينه ستاينومونه زياتره د معنانوم په توګه هم کارول کېږي ، لکه : په توده کې ، په لويه کې يا روغه روغه جوړه او داسې نور .

په پښتو کې ستاينوم د لوړتيا د پوړونو ؛ يا د لږوالي ، ډېروالي ، سستوالي او توندوالي بېلابېلې ښکاره درې ګونې درجې نه لري ، لکه په دري ژبه کې : به ، بهتر ، بهترين ؛ يا بزرګ ، بزرګتر بزرګترين .

له دې کبله يو پښتو ستاينوم د نورو وييو او وييکو ( اداتو) په ملتيا خپل پوړونه ، پوړۍ يا درجې او طبقې ښکاره کوي ، لکه : ښه ، ډېر ښه ، لاډېر ښه ، يا سپين ـ ډېرسپين ـ خورا سپين ـ تر ټولو سپين ـ زښت زيات سپين او داسې نور. ټينګاري کړولونه ( زښت ، خورا، لا ) يا ټينګاري ستاينومونه ( ډېر ، ښه بېخرته ، بې کچه ... ) پر پورتنۍ دندې سربېره د وړپسې نورو ستاينومونو د ټينګتيا ، پراختيا ، يا پياوړتيا لپاره هم کارول کېږي ( **٦ : ٩٩** ) .

له څرنګه چې ليدل کيږي ، د ستاينوم يا صفت په اړه په پښتو ګرامر کې لږ معلومات ورکړل شوي دي ، خو پښتو پښويې په دې اړه ډېر معلومات وړاندې کړي او ګټور دی .

**٧ ـ ٢ ـ ١ د ستاينوم ډولونه**

د صفت د ډولونو په اړه پښتو ګرامر ليکي :

صفت د معنا له مخې لاندې ډولونه لري :

١ ـ اصلي صفتونه .

۲ ـ نسبتي صفتونه .

۳ ـ فعلي صفتونه .

۴ ـ ابهامي او استفهامي صفتونه .

۵ ـ اشاري صفتونه .

٦ ـ عددي صفتونه .

لومړنیو درېیو ډولونو ته ذاتي او اصلي صفتونه یا (Adjective of Quality)او درېیو وروستیو ته تاکیدي صفتونه یا (Adjective of Quantity ) هم ویلای شو.

**۷ ـ ۲ ـ ۱ ـ ۱ اصلي صفتونه**

اصلي صفتونه هغو ته وایي ، چې په یو نوم پورې اړه لرونکي حالات ، ښه وي که بد څرګندوي لکه: مشر سړی ، ښه سړی ، چې دلته ( مشر او ښه ) اصلي صفتونه دي ، ځکه ، چې د یو بل نوم اصلي او ذاتي صفت یې بیان کړی دی ، اصلي صفتونه دوه ډوله دي ، ساده او مرکب.

**۷ ـ ۲ ـ ۱ ـ ۲ نسبتي صفتونه**

هغه دي ، چې د یو شخص یا یو څیز نسبت یو ځای یا یو څیز ته کوي ، نسبتي ټول مرکب دي. د نسبتي صفتونو ځیني مشهورې نښې دادي : ( وال ، نرمه (ی) ، خېل ، زی ، نی ، ین یز او نور ) ، لکه : کامه وال ، کابلی ، سلېمانخېل ، سدوزی ، اوسنی ، ورېښمین ، چره ییز او نور .

**۷ ـ ۲ ـ ۱ ـ ۳ فعلي صفتونه**

هغو صفتونو ته وایي ، چې په هغو کې د یو کارکولو معنا پرته وي ، که هغه فاعل وي ، لکه : تلونکی او تللی او که مفعولي ، لکه : وهلی ، ساتلی او نور .

لومړی هغه ، چې پخپله له مصدر څخه د ښنو په زیاتولو سره جوړېږي ، جوړښت یې عموماً له ټولو مصدرونو څخه له قیاس سره سم وي او دویم هغه ، چې له فعلي ریښې څخه د اداتو په یوځای کېدلو سره جوړ شوي وي ، خو جوړښت یې عموماً له ټولو مصدرونو څخه نه

کېږي بلکې په څو مثالونو پورې محدود وي ، لکه : ساتندوی او ګټېدوی ، چې د (سات او ګټه ) له فعلي ریښو او ( ندوی ) ادات څخه مرکب شوي دي .

**۷ ـ ۲ ـ ۱ ـ ۴ ابهامي او ناڅرګند صفتونه**

هغه دي ، چې د یو شي معلومه اندازه او شمېرنه نه ښیي ، بلکې په نامعلوم ډول د یو شي ښودنه کوي ، لکه : لږ ، ټول ، درست ، ځینې ، ګرد ، نور ، څومره ، نورڅه ، هرڅه ، بل ، بل یو ، یوڅو.

**۷ ـ ۲ ـ ۱ ـ ۵ استفهامي صفتونه**

هغو صفتونه ته وايي ، چې د پوښتنې په وخت استعمالېږي او نومونو ته اختصاص او ټاکنه وربښي استفهامي صفتونه په لاندې ډول دي : څومره ، دومره ، کوم ، کوم یو ، څو ، څووم څوومه .

**۷ ـ ۲ ـ ۱ ـ ٦ اشاري صفتونه**

که چېرې د اشارو په وسیله د یو بل نوم اختصاص څرګند شي او د هغه ټاکنه افاده کړي اشاري صفت ورته ویل کېږي .

د اشارو کلمې یو شی له نامعلوموالي نه وباسي ، معلومتیا وربښي ، لکه : دا پیاله ماته ده ، هغه فلم تور دی ، هغه هلک لېونی دی او نور **( ۳ : ۱۷۳ ـ ۱۸۰ )** .

عددي صفت به ، چې پښتو ګرامر یې د صفت یو ډول بولي ، د عدد نوم تر سرلیک لاندې وڅېړل شي .

پښتو پښویه د صفت د ډولونو په اړه لیکي :

ستاینوم په دوه ډوله دی : ۱ ـ لنډ ؛ ۲ ـ لر .

**۷ ـ ۲ ـ ۱ ـ ۷** لنډ یا اېښیز ستاینوم (Attributive adjective ) هغه دی ، چې د مختاکي (prepositive) په توګه تر ځیزنوم له مخه او ور سره پتلیز راځي او لنډ پر لنډه یې ټاکي او ستایي ، لکه: توره دړه ، روغ سړی ، ښکلې نجلی .

۷ ـ ۲ ـ ۱ ـ ۸ لر یا خبري ستاینوم ( Predicative adjective ) هغه دی ، چې د وسترټاکي (Postpositive) په توګه تر ځيزنوم وروسته راځي او له کړوالي برخې (مسند) سره پیوستون لري ، که څه هم هماغه ځیزنوم ستايي هغه هم په نوموالو غونډلو کې ، لکه : دړه توره ده ، سړی روغ دی ، نجلۍ ښکلې ده ...کې . هرګوره په کړوالو غونډلو کې له کړ سره اړه پیداکوي او په دې توګه پر قید اوړي ، لکه : هلک (پلی) راغی ـ اسمان په ستورو (ښه) ښکاري ، پلوشه (ښکلې) بربښي ـ زه کورته (ډېر) ځم ( ٦ : ٩٨ ) .

د ستاینومونو د ډولونو د څېړنې په برخه کې ، دواړه ګرامرونه پام وړ توپير لري ، ښتو ګرامر صفت په ( اصلي ، نسبتي ، فعلي ، ابهامي ، استفهامي ، اشاري او عددي ) ډولونو باندې وېشي ، خو ښتو ښوونه یې یواځې په دوو ( لنډ او لر ) باندې وېشي .

په ښتو ګرامر کې راغلي تشریحات ګټور دي ، خو دلته راغلي بحثونه داسې دي ، چې نورو ګرامرونو د نورو سرلیکونو په ترڅ کې څېړلي ، چې ښتو ښوونه هم د هماغو په کتار کې راځي. د ښتو ګرامر لومړی ډول ( اصلي ) صفتونه ، په څرګند او واضح ډول د صفت تر تعریف لاندې راځي. ځينې ډولونه یې نورو ګرامرونو د ( ضمیر او قید ) تر سرلیک لاندې څېړلي دی ، چې د اړونده سرلیکونو په ترڅ کې به وڅېړل شي .

**۷ ـ ۲ ـ ۲ د ستاینوم او ستایلي سمون**

په یوه توصیفي ترکیب کې دوه برخې وي ، یوه یې صفت او بل یې موصوف . صفت مو وړاندې وپیژنده موصوف هغه کلمه ده ، چې صفت د هغې څرنګوالی کوي . د صفت او موصوف ترمنځ د بېلابېلو اړیکو په اړه ښتو ګرامر لیکي :

په ښتو کې صفت معمولاً تر موصوف له مخه راځي او په نارینه ، ښځینه ، جمع او مفرد کې د خپل صفت تابه وي ، یعنې د صفت او موصوف ترمنځ مطابقت لازم دی ، لکه : خوږه مېوه ده خـوږې مېوې دي ، خـوږ خټـکی دی ، خـــواږه خټکي دي ، زوړ ســـړی دی ، زاړه ســـړي دي ( ۳ : ۱۷٦ ) .

په پښتو کې ستاینوم او موصوف یا هغه څیزنوم ، چې ستایل کېږي ، د نوم اوړون د دروګونو اړخونو (جنس ، عدد ، حالت) له پلوه سره زیاتره سمون لري ، لکه : ړوند غل ، ړنده غله ، ړانده غله ، ړندې غلې ، د ړانده غله ، د ړندې غلې ، د ړندو غلو ... .

یا په نابشپړ ډول او یا لږ تر لږه د یوه یا دواړو خواوو له پلوه ، لکه : لوی غله ، لوی غل ، لویه غله ، لویې غلې ، د لوی غله ، د لویې غلې ، د لویو غلو یا سپین غل ، سپینه غله ، سپین غله ، سپینې غلې ، د سپین غله ، د سپینې غلې ، د سپینو غلو ... .

مګر له (په) او ( په ـ کې ) سره دغه راز ښځینه نومونه له خپلو اړوندو ستاینومو سره له اوښتي پېر سره نه مخامخېږي .

یادښت : له څیزنوم سره د ستاینوم اوړوني سمون ځینې بېدودې هم لري :

١ ـ په تړولیز ډول ي ـ پای پور ستاینومونه اوړون نه مومي ، لکه : علمي مرکز ، علمي منځی د علمي منځیو ... . د همدا راز پایلې والا نوي پښتو ستاینومونه ، لږ و ډېر بې اوړونه پاتېږي. لکه : پښتني پرمختیایي ، بشپړتیایي ، بېلښتي ... .

٢ ـ که په یو عبارت ، سرلیک او یا ( زیاتره اسمي ) جمله کې یو څیزنوم د څو ستاینومونو تړلنومونو ، یا شمېرنومونو لپاره ګډ وکارول شي ، د جنس او عدد له پلوه له هماغه وروستي ستاینوم ، تړلنوم یا شمېرنوم سره سمون خوري او هماغسې مفرد پاتې کېږي ، یا په بله وینا که د اسمي جملې بڼه ولري ، اړوند اسمي فعل هم ور سره مفرد ( دی ، وو ) راځي ، لکه : (یو ژوندی ولس او وګړي ) له منځه تلای نه شي . زموږ په هېواد کې د یوه سړي او ښځې حقونه سره برابر نه دي .

٣ ـ همدا راز که په یو عبارت ، سرلیک یا جمله کې یو عدد نوم یا ستاینوم یا دواړه غبرګ تر دوو یا ډېرو څیزنومونو له مخه راشي ، له هماغه لومړني څیزنوم سره ګرداني اړخ لګوي او نور ورسره عطف کېږي ، لکه : یوه ښځه او سړی راغلل ، یو دنګ سړی او ښځه له کوره راووتل ، یوه پښتنانه هلک او نجلۍ سره واده وکړ ، د سپین توکم او تولنې وګړي د تور توکم او تولنې له

وګړو سره نه جوړېږي ، له ټولې بشري پوهې او تخنيک څخه به برخمن شو ... (٦ : ٩٩ ـ ١٠٠ ) .

په دې برخه کې پښتو ګرامر لنډ معلومات ورکړي ، خو پر وړاندې يې پښتو پښويه تر هغه ډېر معلومات وړاندې کوي ، د صفت او موصوف د سمون بېلابېل اړخونه يې تشريح کړي دي او ګټورې څرګندونې لري .

## ٧ ـ ٣ شمېرنوم

نومورې برخه په پښتو ګرامر کې د صفت ( د عددي صفت ) تر سرليک لاندې څېړل شوې ده . چې وړاندې مو د ( صفت ) په بحث کې ورته اشاره وکړه ، اوس د ياد سرليک د موادو په اړه دلته بحث کوو. په دې اړه پښتو ګرامر داسې ليکي :

عددي صفت هغه دی ، چې د يو نوم شمېر ، رتبه يا درجه څرګنده کړي ، په پښتو کې د عددونو د ټولو ډولونو په وسيله د يو نوم اندازه يا رتبه بيان او څرګندېږي ( ٣ : ١٨٨ ) .

شميرنوم هم د ستاينوم غوندې په خپلواک ډول کومه نومونه نه کوي ، بلکې په يوه ځيزنوم اړه لري په بله وينا ، لکه پېژند ، ستاينوم ، ټولنوم ... د ځيزنوم يو مځتاکی دی ، څومره والی او پوړوالی ... يې ښيي ، لکه: يو ، دوه ، درې ... يا لومړی ، دويم ، درېيم ... ( ٦ : ١٣٣ ) .

### ٧ ـ ٣ ـ ١ د شمېرنوم ډولونه

د لفظ له مخې عددي صفت په دوه ډوله دی : ساده او مرکب .

ساده : هغه دي ، چې له يو توکي څخه جوړ شوي وي ، لکه : يو ، دوه ، اتيا ... .

مرکب : هغه دي ، چې له دوو توکيو او يا له زياتو څخه جوړ وي ، لکه : دولس ، شپږويشت ، څوارلس ... .

عددونه (عددي صفت ) د معنا له مخې په دوه ډوله دي : مطلق او رتبي .

ټول عددونه ، ساده وي او که مرکب ، که یواځې د څیزونو شمېر وښیي ، مطلق یا اصلي عددونه یې بولي ، لکه : یو ، دوه ، درې ، څلور ، پینځه ... او که چېرې د معدود درجه او رتبه هم بیان کړي رتبي اعداد ورته وایي ، لکه : دویم ، شپږم .

ټول رتبي عددونه له مطلق عددونو څخه داسې جوړېږي ، چې په پای کې د نارینه لپاره (م) او د ښځینه لپاره (مه) ورزیاتېږي او په ( پینځه ، اووه ، اته ) کې وروه (هې) له منځه ځي او هغه عددونه چې په (الف) او (ی) پای ته رسېدلي وي ، په پای کې یې ( یم ، یمه ) یوځای کېږي لکه : دویم ـ دویمه ، سلم ـ سلمه ( **۳ : ۱۸۸ ـ ۱۹۲** ) .

پښتو پښویه د شمېرنوم ډولونه داسې راپیژني :

**۷ ـ ۳ ـ ۱ ـ ۱ اصلي عدد** : لکه : یو ، دوه ، درې ، څلور ... .

**۷ ـ ۳ ـ ۱ ـ ۲ وصفي یا رتبي عدد** : چې د خپل معدود رتبه او درجه ښیي او د صفت غوندې د ګڼې حالت او جنس له مخې ګردانیږي ، لکه : لومړی ، دویم ، درېیم ... ښځینه یې د (زور) په زیاتولو سره رغېږي . د ښځینه جمعي پایله یې (ې) او د دواړو جنسونو اوښتې بڼه په (و) جوړېږي .

**۷ ـ ۳ ـ ۱ ـ ۳ کسري عدد** : چې د اړوند څیزنوم ماتوالی او برخه والی ښیي ، لکه : دویمه درېیمه څلورمه ... سلمه یو سل یومه ... لسیزه یا لسۍ ، سلیزه ( سلۍ ) زریزه یا زرۍ یو ډول ګروپي شمېر نومونه یا مهالپېرونه دي .

**۷ ـ ۳ ـ ۱ ـ ۴ انقسامي عدد** : چې د اړوند نومونو وېشنه او جوړه جوړه کونه څرګندوي او په دې توګه د کسري عدد غوندې له جمعو نومونو سره اړه لري ؛ نه له یوه سره ، لکه : یویو ، دوه دوه ، درې درې څلور څلور ... . همداراز هر دوه ، هر درې ... په همدې ډول اړه لري.

**۷ ـ ۳ ـ ۱ ـ ۵ تخمیني عدد** : د یوه څیزنوم ( معدود ) پرځای غبرګ غبرګ څیزنومونه ښیي او یو هم نه ټاکي ، لکه : یو دوه ، یو درې ، دوه درې ، درې څلور، لس شل ، شل دېرش پنځوس شپېته .... له ناپېژاند یو سره ، لکه : یو دوه درې ، یو لس شل ... یا یوځل دوه یوځل یم ، یو دوه ځله ، یو څوځله، یو څو ، یوڅه او داسې نور.

په دې توګه اړوند څیزنومونه د دواړو شمېر نومونو ترمنځ اټکلېدای او انتخابېدای شي . یا لومړی یا دویم او یا د هغو ترمنځ جوړه جوړه شمېرنومونه پرله پسې وي ، لکه : یو دوه ـ دوه درې او یا په ټاکلي او ټولمنلي واټن سره ، لکه : اته لس ، یا لس شل . مګر ښایي هېڅ یو پښتون دوه څلور ، درې پنځه ، څلور شپږ ... ونه وايي . البته (یو) له هر پورته شمېر سره جوړه کېدای شي خو هغه هم زیاتره د (نا) پېژند (حرف تعریف) په توګه ، چې اټکل ورسره په څیرمه ډول هم څرګندېږي .

**۷ ـ ۳ ـ ۱ ـ ٦ ضربي عدد** : چې څو څو ځله سرباري کېږي ، یا د چا خبره ضربېږي . لکه : دوه ګرایه درې ګرایه څلور ګرایه ( وار ، ځله ، هومره ، پلاوه ، برابره ، چنده ) ... ، یا درې ګرایه لس شل ... همدا راز : یو پر دوه ، یو پر درې ، یو پر څلور... چې د شمېرپوهنې له مخې له کسري شمېر سره تړاو مومي په دوديز یا ګړنيز ډول یو سرباري کېدو جاج ښندي. یو پر یو ، دوه پر دوه ، بیا د یو برابر شمېرو ښکارندويي کوي **( ٦ : ۱۱۳ ـ ۱۱۴ )** .

د شمېرنوم ( عدد) په څېړنه کې هم دواړه ګرامرونه توپیر لري ، پښتو ګرامر لومړی عدد د لفظ یا شکل له مخې په دوه ډوله ( ساده او مرکب ) ویشي ، چې دا ډول وېشنه په پښتو پښويه کې نه تر سترګو کېږي ، همدارنګه عددونه د معنا له مخې په دوه ( مطلق او رتبي ) ویشي . خو پښتو پښويه یې په شپږو ډولونو ( اصلي ، وصفي یا رتبي ، کسري ، انقسامي تخمیني او ضربي ) ویشي . د پښتو ګرامر لومړی ډول ( مطلق ) عددونه د پښتو پښویې له (اصلي) سره انډول دي او ( رتبي ) یې د پښتو پښويې له (وصفي او رتبي ) سره . خو په پښويه کې نور راغلي ( کسري

، انقسامي ، تخميني او ضربي ) ډولونه په پښتو گرامر کې نشته ، په داسې حال کې ، چې په پښتو ژبه کې يې بېلگې شته او دود دي .

**۷ ـ ۳ ـ ۲ د شميرنوم او شمېرلي سمون :** په پښتو کې ټول معدودات تر عددونو وروسته راځي او عموماً د جمع او مفرد له مخې د عددونو تابع وي ، يعنې له ( يو ، يوه ) سره د مفرد او نورو ټولو سره د جمعې په بڼه استعمالېږي او کله کله په صحيح توري پای ته رسېدلي معدودات د جمعې په وخت کې په (زور) سره راوړل کېږي چې په (هې) ليکل کېږي ، لکه : يو آس ، يوه آسپه ، دوه آسونه يا دوه آسه ، څلور کتابونه يا څلور کتابه ، پنځه څوکۍ ، شپږ مېزونه ، يا شپږ مېزه ( ۳ : ۱۹٦ ) .

په پښتو کې شمېرنوم ، لکه لنډ ستاينوم تر خپل اړوند څيزنوم معدود له مخې راځي او لږ ډېر ورسره اوړون مومي ، هغه دا چې لومړی دوه شمېره ( يو ، دوه ) ورسره د جنس او حالت له مخې گردانېږي او نور پورته ورسره يواځې د حالت له مخې ، لکه په لاندې توگه :

يو غل ـ يوه غله

يوه غله ـ يوې غلې

دوه غله ـ دوې غلې

دوو غلو ـ دوو غلو

درې غله ـ درې غلې

درو غلو ـ درو غلو

څلور غله ـ څلور غلې

څلورو غلو ـ څلورو غلو ( ٦ : ۱۱۴ )

د عدد او معدود د سمون په برخه کې ، د دواړو گرامرونو ( پښتوگرامر او پښتو پښوويې ) څرگندونې نږدې سره ورته او يو ډول دي ، دومره توپير نه لري . خو د پښتو پښوويې هغه څه ډېرې دي .

## ۷ ـ ۴ نومځري

ضمیر هغه کلمه ده ، چې د نوم پرځای د تکرار د لرې کولو او د وینا د لنډیز لپاره راځي او د نوم ځای نیوونکی (قایم مقام) ورته وایي ، لکه : په دې جمله کې ( سلیم دلته نشته ، هغه کور ته تللی دی) په دې کې (هغه) ضمیر دی ، ځکه چې د سلیم پرځای راغلی دی او د هغه ځای یې نیولی دی ( ۳ : ۱۴۴ ) .

ضمیر هغه کلمه ده چې د څیزنوم ښکارندویي کوي ، د هغه پرځای راځي او یا یو نیم یې لکه اشاري ضمیرونه ملګرتیا کوي ، او د همدغې دندې له مخې د نومونو په ډله کې ځای نیسي په بله وینا ، ضمیر له هغې ډلې کلمو څخه دی ، چې په یوه جمله کې یا وینا توټه کې د یو نوم یا نومیز غونډ ځایناستی کېږي ، خو په دې لړ کې په ځانګړي ډول د درېیم شخص ضمیر هله استعمالېږي ، چې اړوند نوم یا نومیز غونډ یې په هماغه چاپېریال کې وار له واره یاد شوی وي او یا یې لنډ پر لنډه یادونه کېږي .

کله کله چاپېریال یا قرینه کېدای شي ، ژبنی نه ، بلکې طبیعي حالت او د چاپېریال زېږنده وي د بېلګې په توګه د غږېدونکي او اورېدونکي پر وړاندې څوک ټیکاو لري او په سترګو یې ګوري خو د نوم پر ځای ورته ضمیر کاروي . په ادبي ژبه ، په تېره په شعر او داستان کې نومونه تر ضمیرونو له مخه راځي او ان پیل یې هم لرو ډېر په ضمیرونو کېږي . له نورو نومونو ( نوم ، صفت او عدد ) سره د ضمیر توپیر دادی ، چې دا پر درې ګونو اړخونو (جنس عدد او حالت) سربېره د شخص ( لومړی ، دویم او درېیم ) له مخې هم ګردانیږي ( ٦ : ۱۱۵) .

د ضمیر یا نومځري په برخه کې هم دواړو ګرامرونو خپلې ګټورې خرګندونې او معلومات وړاندې کړي ، د دواړو تشریحات سره ورته او ډېر توپیر نه لري . خو د پښتو پښوویې معلومات ډېر او د ضمیر د کارونې بېلابېل اړخونه یې په ګوته کړي دي .

### ۷ ـ ۴ ـ ۱ د نومځري ډولونه

ضمیر په پښتو کې بېلابېل ډولونه لري ، چې په لاندې توګه ، په دواړو ګرامرونو کې راغلي ډولونه ښوول کېږي :

### ۷ ـ ۴ ـ ۱ ـ ۱ شخصي ضمیرونه

هغه ضمیرونه دي ، چې عموماً اشخاصو پرځای راځي او یو له درېیو اشخاصو څخه ښیي .

اشخاص په درې ډوله دي :

۱ـ متکلم : هغه څوک دی ، چې خبرې کوي .

۲ ـ مخاطب : هغه چاته ویل کېږي ، چې خطاب ورته کېږي او خبرې ورسره کېږي .

۳ ـ غایب : هغه څوک دی ، چې د متکلم او مخاطب په منځ کې د هغه په هکله خبرې کېږي.

دوی ته ( لومړی ، دویم او درېیم ) اشخاص هم وایي .

څرنګه چې ضمیر د نوم ځای نیسي . د درې واړو اشخاصو پرځای استعمالېږي او د اشخاصو له مخې په متکلم ضمیر ، مخاطب ضمیر او غایب ضمیر باندې وېشل کېږي ، د متکلم ضمیر مثال (زه) د مخاطب ضمیر(ته) او د غایب ضمیر (دی) دی . سربېره پر دې ، ضمیر د نوم په څېر د شمېر او کیفیت له مخې هم ډولونه لري او په مفرد او جمعې او ځینې یې په نارینه او ښځینه هم وېشل کېږي او همدارنګه ځینې حالتونه هم لري .

### ۷ ـ ۴ ـ ۱ ـ ۱ ـ ۱ د شخصي ضمیرونو ډولونه

شخصي ضمیرونه د استعمال له مخې په دوو ډولونو وېشل کېږي :

لومړی ډول یې پیوست ضمیرونه دي او دویم یې ناپیوسته (جلا) ضمیرونه دي .

پیوست : هغه ته ویل کېږي ، چې یواځې نه ذکر کېږي او همیشه له فعل سره په لیکلو کې یوځای راځي لکه: ( م ـ و ) په ( راغلم ) او ( راغلو ) کې ، پیوسته ضمیرونه دادي :

متکلم ـ مفرد ( ام ) ، لکه : ځم جمع ( و) ، لکه : ځو

مخاطب ـ مفرد ( ې ) ، لکه : ځې جمع ( ئ ـ است ) ، لکه : راغلئ ، راغلاست

غایب :

( ي ) : دی ځي .

( ی ) : حمید تللی دی .

( ې ) : دوې ولاړې .

( ل ) : هلکان راغلل .

( زور ) : ښځه راغله .

( زورکی ) : زلمی په باغ کې ګرځېده .

پورتني پیوست ضمیرونه خاص د افعالو لپاره دي او د فعلونو د صیغو په جوړښت کې ستره برخه لري ، ځکه د فعل له ریښې سره د هغو له یوځای کېدو څخه پرته نه شي کېدلی ، چې فعلونه جوړ شي نو له همدې امله پورتنیو پیوست ضمیرونو ته فعلي ضمیرونه هم وایي .

پورتني ناخپلواک ضمیرونه دوه حالته ( فاعلي او مفعولي ) لري او په لازمي افعالو کې د فاعل په توګه او په متعدي افعالو کې د مفعول په توګه واقع کېږي ، مګر په استعمال کې ورسره خپلواک ضمیرونه هم راوړل کېږي ، لکه :

فاعلي حالت

متکلم : زه خېږم (مفرد )

موږ خېږو ( جمع )

مخاطب : ته خېږې ( مفرد )

تاسې خېږئ

مذکر : دی پاڅېده

دوی پاڅېدل

غایب

مونث : دا پاڅېدله

دوی پاڅېدلې

مفعولي حالت

متکلم ( مفرد ) : زه یې ووهلم

متکلم (جمع) : موږ یې ووهلو

مخاطب : ته یې ووهلې

تاسې یې ووهلئ ـ ووهلاست

مذکر : دی يې وواهه　　　　　　　　دوی يې وواهل

غايب

مونث : دا يې وواهله　　　　　　　　دوی يې وواهلې

١ ـ جلا ( منفصل ) ضميرونه

هغو ضميرونو ته وايي ، چې له بلې کلمې سره د يوځای کېدو څخه پرته جلا او ځانله ليکل کېږي ، د بېلگې په توگه ( زه پاځم ، کتاب مې ورک شو ، سليم راته وويل ) زه ، مې ، را جلا ضميرونه دي .

په پښتو کې جلا او ځانله ضميرونه په درې ډلو وېشل کېږي، چې دادی دلته يې هر ډول بيانيږي :

لومړی ډول جلا ضميرونه

جلا او ځانله ضميرونه زياتره د جملې يا فقرې په پيل کې استعمالېږي او د استعمال او معنا له مخې جلا ضميرونه گڼل کېږي ، لکه : زه ځم ـ ته دی بيايې .

دغه ډول ضميرونه په پښتو کې نسبتاً زيات دي او زيات تفصيل غواړي ، چې دلته يې په لاندې توگه ښودل غواړو :

په پښتو کې د نورو ژبو پر خلاف د هر يو مفرد متکلم ، مفرد مخاطب او مفرد غايب لپاره دوه ډوله جلا ضميرونه راوړل کېږي ، نو د دويم شخص يا غايب لپاره څلور ډوله ضميرونه ، چې دوه يې د درېيم نږدې شخص او دوه نور يې د لرې درېيم شخص لپاره دي ، استعمالېږي .

درېيم نږدې شخص هغه دی ، چې د هغه په موجوديت کې د هغه خبرې کېږي ، لکه : (دی) او لرې (هغه) دی ، چې د هغه په غياب کې د هغه په هکله خبرې کېږي ، يا موجود وي ، خو يو څه لرې وي لکه : (هغه)

د لومړي ډول جلا ضمیرونو شمېر په پښتو کې (١٥) ته رسېږي ، چې د هغو له جملې څخه درې د متکلم ، درې د مخاطب او پینځه د نږدې غایب او پاتې څلور یې د لرې غایب لپاره کارول کېږي .

| لومړی شخص | | دویم شخص | | درېیم شخص | |
|---|---|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| زه ، ما | موږ | ته ، تا | تاسې ، تاسو | مذکر : دی ، ده<br>مونث : دا | دوی<br>دی |
| لرې درېیم شخص | | | | | |
| مفرد | | | | جمع | |
| مذکر : هغه د (غ) په زور ـ هغه د (غ) په زورکې<br>مونث : هغه د (غ) په زور ـ هغې | | | | هغوی ، هغوی | |

د لومړي ډول ضمیرونو حالتونه

لومړۍ ډله جلا ضمیرونه په پورتني جدول کې ونښودل شو ، بېلابېل حالتونه لري او د استعمال له مخې یو له بل سره زیات اختلاف لري ، نو غواړو ، چې دلته یې حالتونه بیان کړو :

١ ـ له پورتنیو ضمیرونو څخه څلور ( ده ، دې ، هغه د (غ) په زورکې ، هغې ) یواځې فاعلي حالت لري چې هغه هم خاص د ماضي متعدي فعل لپاره ، یعنې چې دغه څلور ضمیرونه یواځې د متعدي ماضي فعل د فاعل په توګه استعمال شوي دي او بې له هغې څخه هېڅ نه استعمالېږي.

نارینه : ده اوبه راوړې ، هغه اوبه راوړې .

ښځینه : دې اوبه راوړې ، هغې اوبه راوړې .

۲ ـ ( ما ـ تا ) دغه دوه ضمیرونه دوه حالتونه ( فاعلي او مفعولي ) لري ، خو فاعلي حالت يې خاص د متعدي ماضي او مفعولي حالت يې يواځې د حال او راتلونکي لپاره دی ، لکه :

| مفعولي حالت | | |
|---|---|---|
| فاعلي حالت | حال | راتلونکی |
| ما اوبه راوړې | سلیم ، ما کورته بیایي | ما به کور ته بوځي |
| تا اوبه راوړې | سلیم ، تا کور ته بیایي | تا به کور ته بوځي |

۳ ـ ( زه ـ ته ) : دغه دوه ضمیرونه هم دوه ( فاعلي او مفعولي ) حالتونه لري ، یعنې دا چې فاعل او مفعول راتلای شي ، خو مفعولي حالت يې يواځې د متعدي ماضي او فاعل حالت يې په متعدي فعلونو کې خاص د حال ، راتلونکي فعل لپاره دی او په لازمي فعلونو کې عموماً په تېره زمانه او حال کې د فاعل په توگه استعمالېږي ، لکه :

| د متعدي فعل فاعلي حالت | | |
|---|---|---|
| حال | راتلونکی | مفعولي حالت |
| زه سلیم کورته بیایم | زه به سلیم کور ته بوځم | زه سلیم کورته بوتلم |
| ته سلیم مورته بیایې | ته به سلیم کورته بوځې | ته سلیم کورته بوتلې |

۴ ـ ( دی ـ دا ـ هغه د (غ) په زور ) : دغه ضمیرونه هم فاعلي او مفعولي دوه حالتونه لري ، خو فاعلي حالت يې په متعدي فعلونو کې خاص د حال او راتلونکې لپاره دی ، یعنې په متعدي فعلونو کې يواځې د حال او راتلونکي فعل ، فاعل واقع کېږي او مفعولي حالت يې کوم اختصاص نه لري ، بلکې هم په ماضي فعل او هم په حال کې د مفعول په توگه راتللی شي . همدارنگه په لازمي فعلونو کې عموماً په ماضي ، حال او راتلونکي کې د فاعل په توگه استعمالېږي لکه :

| فاعلي حالت | مفعولي حالت | |
|---|---|---|
| متعدي حال فعل | ماضي | حال |

| | | |
|---|---|---|
| نارینه : هغه مې بیایي | دی مې وواهه | دی وهم |
| نارینه : هغه مې بیایي | هغه مې وواهه | هغه وهم |
| ښځینه : دا مې بیایي | دا مې ووهله | دا وهم |
| ښځینه : هغه مې بیایي | هغه مې ووهله | هغه وهم |

لازمي فعل : په ماضي کې ، لکه : دی پاڅېد او په حال کې ، لکه : دی پاڅېږي او نور .

۵ ـ ( موږ ، تاسې ، دوی ، هغوی ) : دغه د جمعي ضمیرونه د استعمال او حالت له مخي هېڅ اختصاص نه لري . په حال ، ماضي او مستقبل فعلونو کې هم د فاعل او هم د مفعول په توګه استعمالېږي .

| ماضي | | حال | راتلونکی |
|---|---|---|---|
| لازمي فعل | موږ غره ته وختو | موږ غره ته خېږو | موږ به غره ته وخېږو |
| فاعلي حالت | موږ اوبه راوړې | موږ اوبه راوړو | موږ به اوبه راوړو |
| مفعولي حالت | سلیم موږ بوتلو | سلیم موږ بیایي | سلیم به موږ بوځي |

ارتباطي حالت

په لومړي ډول جلا ضمیرونه کې یواځې ( زه ، ته ، دی ، دا ، هغه ، د (غ) په زور ) ارتباطي حالت دود نه لري ، یعني له ارتباطي اداتو سره نه استعمالېږي او پاتي ټول لومړی ډول جلا ضمیرونه د نوم په څېر ارتباطي حالت لري او کولی شو هغه له ټولو ارتباطي اداتو سره استعمال کړو ، لکه :

| مفرد | جمع |
|---|---|
| ما : بې له ما څخه بل څوک راغلي نه دي . | موږ : موږ ته خپل وطن ګران دی . |
| تا : له تا سره مې کار دی . | تاسې : له تاسې سره بل څوک دي ؟ |
| ده : ده ته څه مه وایه ! | دوی : پر دوی مې روپۍ دي . |
| هغه : پر هغه باندې یې پور دی . | هغوی : هغوی ته مې کتابونه ورکړل . |
| دې : له دې سره ولاړ شه ! | |

| | |
|---|---|
| هغې : له هغې نه دا پوهه ده . | |

۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۲ اضافي ضميرونه

لومړی دله خپلواک ضميرونه پرته له ( زه ، ته ، دی ، دا ، هغه د (غ) په زور سره ) نور ټول اصلي اضافي حالت لري ، يعنې مضاف اليه واقع شوي ، خو دا چې په اضافي حالت کې بله بڼه او صورت غوره کوي په همدې اساس موږ هغه اضافي ضميرونه بولو ، په لاندې توګه يې جوړښت بيانېږي :

له غير اضافي جلا ضميرونو څخه اضافي ضميرونه داسې جوړېږي ، چې د غايبو ضميرونو په پيل کې (د) او د متکلم ضميرونو په پيل کې (ز) او د مخاطبو ضميرونو په پيل کې (س) يوځای کېږي ، په ښتو کې د اضافي ضميرونو شمېره (۱۰) ته رسېږي ، چې دوه يې د متکلم لپاره او دوه يې د مخاطب لپاره او (٦) يې د غايب لپاره دي ، ټول په لاندېني فهرست کې ښودل کېږي :

| متکلم | مخاطب | نږدې غايب | لرې غايب |
|---|---|---|---|
| مفرد : زما ـ ستا | د ده (مذکر) ، د دې (مونث) | د هغه ( مذکر) | د هغوی (مونث) |
| جمع : موږ ، ستاسې تاسو | د دوی ( مشترک) | د هغوی (مشترک) | |

پورتني اضافي ضميرونه د نوم په شان له خپل مضاف څخه د مخه استعمالېږي ، لکه :

| | |
|---|---|
| زما کور په کابل کې دی . | زموږ مشر ښتون دی . |
| ستا فکر په دې خبره نه رسېږي . | ستاسې خيال خوشې دی . |

| | |
|---|---|
| د ده لاس خوږېږي . | د دوی تعليم زيات دی . |
| د دې زړه خپه دی . | د هغوی فکر پوخ دی . |
| د هغه پلار ژوندی دی . | |
| د هغې مور مړه ده . | |

دويم ډول جلا ضميرونه

دويم ډول جلا ضميرونه د فعلونو په منځ او پای او د نومونو په پای کې استعمالېږي او هېڅکله هم د جملې او فقرې په پيل کې نه راځي .

په پښتو کې د دويم ډول جلا ضميرونو شمېره (۵) ده چې په لاندې فهرست کې ښودل کېږي:

| متکلم | مخاطب | غايب |
|---|---|---|
| (مې) د مفرد نارينه او ښځينه لپاره | (دې) د مفرد نارينه او ښځينه لپاره | يې |
| (مو) د جمع نارينه او ښځينه لپاره | (مو) د جمع نارينه او ښځينه لپاره | د ټولو لپاره |

پورتني جلا ضميرونه درې حالتونه ( فاعلي ، مفعولي ، اضافي ) لري ، کله چې فاعل او يا مفعول په جمله کې کم نه وي ، په اضافي حالت کې ګڼل کېږي او مضاف اليه واقع کېږي ، خو فاعلي حالت يې يواځې د متعدي ماضي لپاره دی او مفعولي حالت يې خاص د فعل ، راتلونکي او امر لپاره دی ، لکه :

| فاعلي حالت | مفعولي حالت | اضافي حالت |
|---|---|---|
| کتاب مې واخيست | سليم مې بيايي | کتاب مې سليم واخيست |
| کتاب مو واخيست | سليم مو بيايي | کتابونه مو سليم واخيستل |
| کتاب دې واخيست | سليم دې بيايي | کتاب دې سليم واخيست |
| کتاب مو واخيست | سليم مو بيايي | کتاب يې سليم واخيست |

| | | |
|---|---|---|
| کتاب يې واخيست | سليم يې بيايي | |

يادونه : دا ډول ضميرونه هېڅکله د ارتباط له اداتو سره په پيوست ډول نه استعمالېږي ، لکه: د (ماته) پرځای (مې ته ) نه ويل کېږي او د لازمي افعالو سره هم نه راځي .
په هغه صورت کې چې فاعل او مفعول د جملې په پيل کې راغلي وي ، نو په دغسې وخت کې (مې دې ... ) تر خپل مضاف د مخه يعنې له فاعل او مفعول سره پيوست راځي ، لکه: سليم مې قلم واخيست، ما مې خپل کتاب راوړ ، تا دې پلار راوست .
درېيم ډول جلا ضميرونه
په پښتو کې درېيم ډول جلا ضميرونه له ( را ، در ، ور ) څخه عبارت دي ، دغه کلمې په فعلي او ظرفي ترکيبونو کې راځي او کله کله د ضميرونو په توګه د فعلونو او له ځينو ظروفو څخه دمخه استعمالېږي او کله کله يواځې د لوري او جهت معنا ورکوي ، خو داچې لومړی د متکلم دويم مخاطب او درېيم د غايب لپاره دی ، نو په همدې اساس پکې د ضميرونو خصوصيت زيات دی . اوس غواړو، چې د پورتنيو ضميرونو حالتونه ، د استعمال ځايونه او نور ځانله خاصيتونه وښيو :
۱ ـ نوموړي ضميرونه په متعدي افعالو کې زياتره د دويم مفعول پرځای استعمال شوی دی خو د مفعوليت د نښو ( ته ، له ) استعمال ورسره ډېر کم دی ، لکه : قلم مې وروباښه ، آس يې وروباښه دا کتاب مې وروباښه .
په پورتنيو جملو کې قلم ، آس ، کتاب لومړنی مفعول او (ور ، را ، ور ) د دويم مفعول ، يعنې متکلم غايب او مخاطب په ځای استعمال شوي دي او په هغه صورت کې ، چې د دويم مفعول هم ذکر شوی وي ، يواځې د فعل تاکلی لوری په ګوته کوي . لکه : سليم ته يې آس وروباښه ، په جمله کې څرنګه چې دويم مفعول يعنې (سليم) ياد شوی دی ، نو (ور) يواځې د فعل لوری افاده کوي .

۲ ـ که چېرې درېیم ډول جلا ضمیرونه د (لاندې ، باندې ، ځینې ، څخه ، ته ) له اداتو څخه دمخه راشي او لازمي اضافي ظروف ( کره ، سره ، پسې ) ورپسې راشي ، په دې صورت کې مضاف الیه واقع کېږي او د اضافي حالت لرونکي ګڼل کېږي ، لکه :

باندې : زماورباندې روپۍ دي .

لاندې : دېوال پرېوت ، سلیم ورلاندې شو .

څخه : ځنې ، نه : داکتاب درڅخه ـ درځنې اخلم .

کره : زه در کره نه درځم .

سره : زه ورسره نه ځم .

پسې : سلیم راپسې راروان دی .

۳ ـ پورتني ضمیرونه کله کله د فعلونو او مصدرونو یوه برخه واقع کېږي ، په دغه صورت کې د فعل اصلي معنا ته تغیر ورکوي او د جهت له افادې سره یوه بله معنا هم ورکوي ، لکه : کول راکول ، وړل راوړل ، تلل ، راتلل .

۴ ـ پورتني ضمیرونه په لازمي فعلونو او کله کله په متعدي فعلونو کې پرته د فعل د اصلي معنا له بدلون څخه یواځې ټاکلي جهت افاده کوي ، لکه : راختل ، ورختل ، درختل ، راکوزېدل راپاڅول ، راخېژول لکه : په ( سلیم راوخوت ) کې ( را ) د فعل د جهت او لوري د څرګندولو او بیانولو لپاره استعمال شوی دی ( ۳ : ۱۴۴ ـ ۱٦٠ ) .

۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۳ اشاري ضمیرونه

په پښتو کې یو شمېر کلمې شته چې هغه د اشخاصو او شیانو پرځای د اشارې په توګه استعمالېږي دغه ډول کلمو ته اشاري ضمیرونه هم وایي ، اشاري ضمیرونه په خپل منځ کې د لرې والي او نږدې والي له مخې درجې لري ، چې ټول یې یواځې د غایبو څیزونو او اشخاصو لپاره کارول کېږي ، لکه : کولی شو (دغه) د شخص ، حیوان او جماد لپاره استعمال کړو ، لکه

: دغه ( سړی ) پاڅېد ، دغه (لښته) ماته شوه، دغه (لړم) مړ که ، اوس اشاري ضميرونه له خپلو اوصافو او حکمونو سره په لاندې ډول بيانېږي:

١ ـ په پښتو کې اشاري ضميرونه دا لاندې دي :

| نږدې | | لرې | |
|---|---|---|---|
| مفرد | جمع | مفرد | جمع |
| نارينه : دغه | دغو | هغه | هغو |
| ښځينه : دغې | دغو | هغې | هغو |

٢ ـ په پورتنيو کلمو کې (دغې) ، (هغې) د ماضي متعدي فعل په فاعلي او ارتباطي حالت کې د مفرد مونث لپاره او ( دغو ، هغو ) د جمع مذکر او مونث لپاره ، يعنې په دغو دواړو حالتونو کې استعمالېږي او (دغه ، هغه) په نورو ټولو پاتې حالتونو کې د جمع ، مفرد ، مذکر او مونث لپاره يوشان راځي ، لکه :

| فاعلي حالت | ارتباطي حالت |
|---|---|
| دغې ډوډۍ پخه کړه . | دغې ته ووايه چې راشي . |
| هغې کالي ومينځل | د دې کوټې دروازه نشته او د هغې شته |
| دغو سړک جوړ کړ | د دغو کار مه ايساروه |
| هغو خپل کار وکړ | له هغو نه ضامن واخله |

نور حالتونه

دغه : دغه راغلی و ، دغه يې ووهله ، دغه يې ووهل ، هغه راغلی نه و ، هغه يې وهلې نه وه ، هغه يې ټول راوستل .

٣ ـ ( دی ، ده ، دا ، دې ، دوی ، هغه ، هغه د (غ) په زورکې ، هغه ، هغې ، هغوی ) غايب ضميرونه ته هم اشاري ضميرونه ويلای شو ، ځکه چې نوموړي ضميرونه د اشاري په وختونو

کې له اشخاصو سره استعمالېږي ، خو د غایبو او اشاري ضمیرونو ترمنځ توپیر دادی ، چې له غایبو ضمیرونو سره پرته له (دا دی ، هغه ) استعمالاً مرجع نه راوړل کېږي ، لکه : ( دی راغی ، ده وویل ، هغوی کښېناستل ) پرځای دی سړی راغی ، ده سړي وویل ، دوی سړو خط ولیکه غلط او له استعمال او محاورې څخه بهر دي خو په اشاري ضمیرونو کې د مشاراليه او مرجع راوړنه استعمالاً جایز او فصیح ده او په دغه صورت کې ورته اشاري صفت وایي ، لکه : دغې ښځې ډوډۍ پخه کړه ، دغو سړو سړک جوړ کړ ، دغه هلک راغلی و ، له هغو سړو نه ضامن واخله .

۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۴ استفهامي ضمیرونه

استفهامي ضمیرونه هغو ته ویل کېږي ، چې د اشخاصو او څیزنومونو پرځای د پوښتنې په وخت کې راځي ، چې په لاندې ډول دي :

چا : د اشخاصو لپاره د متعدي ماضي په فاعلي او ارتباطي حالت کې استعمالېږي ، لکه : چا جگړه وگټله ؟ چا توره وکړه ؟ دا سړی د چا ورور دی ؟ چاته وایې ؟ په چا دې پور دی ؟

څوک : دغه ضمیر هم د اشخاصو لپاره دی او د چا په مقابل کې عموماً د لازمي افعالو په فاعلي حالت کې او په حال او راتلونکې زمانه کې د متعدي افعالو په فاعلي حالت کې او عموماً په مفعولي حالت کې استعمالېږي ، خو ارتباطي حالت نه لري ، لکه : څوک لوېدلی دی ؟ څوک راځي ؟ څوک دې وهي ؟ څوک به دی بوځي ؟

څه : په ساکښ او غیرساکښ کې د یو شي د ټاکنې لپاره د پوښتنې په ډول په درېیو حالتونو کې ( فاعلي مفعولي او ارتباطي ) کې استعمالېږي ، لکه :

فاعلي حالت : څه وچیچلې ؟ څه ژوبل کړې ؟

مفعولي حالت : تاڅه واخیستل ، ته څه اخلې ؟

ارتباطي حالت : له څه وېرېږې ؟ څه پسې درومې ؟

ځومره = ځونه : دغه ضمیرونه عموماً د اندازې او شمېر د پوښتنې لپاره راځي او د جمعې مفهوم افاده کوي لکه : ځومره دې واخیستل ؟ ځومره ولاړل او ځومره پاتې شول ؟ ځونه دې وخوړل او ځونه پاتې دي ؟

ځو : د ځو شیانو د شمېر ټاکنې د پوښتنې لپاره راځي او د جمعې مفهوم لري ، لکه : ځو دې واخیستل؟ په یوه روپۍ ځو ورکوې ؟ ځو اخلې ؟

یادونه : پورتني استفهامي ضمیرونه د ګردان او تغیر وړ نه دی او تل په یو حالت کې راځي ، خو د زیاتو افرادو او شیانو د ښودلو په وخت کې کولای شو هغه په تکراري ډول استعمال کړو لکه : څوک څوک ځي؟ چا چا ته دې ویلي دي ؟ څه څه دې اخیستي دي ؟ ځومره ځومره ځني اخلې ؟ یو یو تن ته ځو ـ ځو ورکوې ؟

ځوم = ځومه = ځومې : د یو شي یا یو شخص د رتبې او درجې د ټاکنې لپاره استعمالېږي ، چې لومړی یې عموماً مفرد نارینه او دوه نور یې د ښځینه لپاره دي ، خو (ځومې) په فاعلي او ارتباطي حالت او (ځومه) په نورو حالتونو کې راځي . لکه:

| نارینه | ښځینه |
|---|---|
| ارتباطي حالت | ځوم ته یې ورکړم ؟ ځومې ته دې ورکړه ؟ |
| فاعلي حالت | ځوم ووهلې ؟ ځومې ووهلې ؟ |

ځومره اخلې ؟ ځومه غواړې ؟ ځومه راغله ؟

کوم = کم = کوم یو = کومه یوه = کومې = کومو : دغه ضمیرونه د یو څیز یا یو شخص ذات او جنس ټاکنې لپاره کارول کېږي په دې کې (کوم) عموماً د نارینه مفرد لپاره او په جمع کې د غیرفاعلي او ارتباطي حالت لپاره او (کومه) د مفرد مونث او (کومې) د مفرد ښځینه لپاره په فاعلي او ارتباطي حالت کې او د ښځینه جمعې لپاره په غیرفاعلي او ارتباطي حالت کې او

(کومو) د ښځینه او نارینه جمعو لپاره په فاعلي او ارتباطي حالت کې استعمالېږي ، لاندې بېلګې وګورئ !

(کوم) په مفرد کې : کوم دې په کار دی ؟ له کوم يو سره ځې ؟ کوم ووهلې ؟

(کوم) په جمع کې : کوم يې بوتلل او کوم يې پرېښودل ؟

(کومه) کومه يو غواړې ؟ کومه يوه راغله ؟

(کومې) په مفرد کې : کومې درنه قلم واخيست ؟ کومې ته دې قلم ورکړ ؟

(کومې) په جمع کې : کومې راغلې وې او کومې راغلې نه وې ؟

(کومو ) کومو ډوډۍ وخوړله ؟ له کومو نه يې اخلئ ؟

يادښت : ښکاره دې وي ، چې ټول استفهامي ضميرونه پرته له (څوک ، چا ) څخه زياتره له خپلې مرجع سره استعمالېږي او په هغه صورت کې ورته استفهاميه صفت ويل کېږي ، چې د صفت په برخه کې به يې يادونه وشي ، له همدې امله پورتني ضميرونو هغه وخت ضميرونه دي چې مرجع ورسره ذکر شوې نه وي .

**۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۵** ربطي ضميرونه

ربطي ضميرونه هغه دي ، چې په جمله کې د نوم پرځای د ربط دنده سرته رسوي او تل په هغه جمله کې راځي ، چې دويمه جمله يې ځواب وي .

ټول ربطي ضميرونه له دوو توکيو څخه جوړ شوي او مهم توکی يې (چې) دی ، دغه ادات د پوهمنو او ناپوهمنو لپاره يوشان استعمالېږي او د ذکر شوي ځيز رابطه له وروسته سره څرګندوي استفهامي ربطي ضميرونه په لاندې ډول دي :

| ربطي ضميرونه | بېلګه |
|---|---|
| څوک چې | څوک چې نيکي کوي هغه به ثواب مومي . |
| چا چې | چاچې کار وکړ ، ګټه د هغو ده . |
| څه چې | څه چې کرې هغه به رېبې . |

| | |
|---|---|
| هرڅوک چې | هر څوک چې کوښښ کوي ، کامیابېږي . |
| کوم چې | کوم چې دې په کار وي ، هغه واخله . |
| هرڅه چې | هر څه چې وایي ، وایه . |
| هرچې | هرچې ماغوندې غمجن وي ، څه به خوب کا . |
| هریو چې | هریو چې دې په کار وي ، در به یې کړم. |
| څومره چې | څومره چې خوړلی شې ، هغه وخوره . |
| ځینې چې | ځینې چې راغلي وو . دلته دي . |
| څو چې | څو چې ته غواړې در به یې کړم . |

یادښت : ( ترې ، ترېنه ، ځنې ) کلمې د ( از ان ، از او ) په معنا او (پرې) د (به او) په معنا (پکې) د (در ان) په معنا هم په پښتو کې له ربطي ضمیرونو څخه شمېرل کېږي او د ارتباط او نسبت دنده پرځای کوي .

پورتنۍ کلمې اصلاً (ترده ، پرده ، په هغه کې ) پرځای د تخفیف او لنډیز په بڼه د غایب لپاره استعمالېږي. لکه :

پرې : زما پرې روپۍ دي .

ترې = ترېنه : قلم ترې ـ ترېنه واخله .

ځنې : پوښتنه ځنې وکړه .

پکې : سلیم پکې ویده دی .

**۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ٦** ناڅرگند ( مبهم ) ضمیرونه

کله چې د یو شخص یا یو څیز د نوم او یا د هغه د اندازې او شمېر څرگندونه مقصد نه وي په ناڅرگنده توگه ځینې کلمې استعمالېږي ، که چېرې دغه کلمې د نوم پرځای له خپل موصوف څخه پرته راوړل شي ناڅرگند ضمیرونه ورته وایي ، چې په څو ډوله دي :

۱ ـ ساده ناڅرگند ضمیرونه : له ( څوک ، چا ، څه ، هېڅ او څومره ) څخه عبارت دي ، دغه ضمیرونه پرته له (هېڅ) څخه هماغه استفهامي ضمیرونه دي ، چې له مخه بیان شول ، خو کله

چې د استفهام لپاره نه وي نو ناځرګند ضميرونه ګڼل کېږي ، لکه : څوک شته او څوک نشته چا کار کړی دی او چا کړی نه دی ، څه دادي او څه کور دي ، څو يې مړه شول او څو يې پاتې دي ، څومره چې غواړې شته دي ، دلته هېڅ نشته .

۲ ـ مرکب ناځرګند ضميرونه : له مخکنيو يادو شويو ضميرونو سره د (هر) په يوځای کولو سره لاس ته راځي لکه : که (هر) له (څوک) ، (چا) او (څومره) سره يوځای شي ( هرڅوک هرچا او هرڅومره ) ورځخه جوړيږي ، همدارنګه له (چا او څوک) سره د (هېڅ) په يوځای کېدلو او د (څ) په حذف سره جوړيږي ، لکه :

هرڅوک : هرڅوک [ هر سړی ] پيدا دي خپل خپل کار لره کنه .

هرچا : هرچا پکې څه ويلي دي .

هرڅه : دلته هرڅه پيداکېږي .

هرڅومره : هرڅومره چې غواړې ، موجود دي .

هيچا : هيچا بد کار کړی نه دی .

هيڅوک : هيڅوک نه وايي ، چې زه ناپوه يم .

۳ ـ لاندينې ساده صفتونه په عمومي محاوره کې د ناځرګندو ضميرونو په توګه استعمالېږي ، لکه :

ټول = ګرد : ټول يا ګرد راغلي دي .

ډېر : ډېر يې ونيول .

لږ : لږ يې پرېښودل .

درست : درست ايسار شوي دي .

نور : نور هلته تللي دي .

ځينې : ځينې ښه دي ، ځينې بد دي .

بل : بل مې په کار نه دی .

همدارنګه لاندیني مرکب صفتونه هم د ناځرګندو ضمیرونو په توګه استعمالېږي ، لکه :

نورڅوک : نور څوک نشته .

بل څوک : بل څوک نه وايي .

بل څه : د بل څه غرض نشته .

نور څه : نور څه نه غوارم .

بل څه : بل څه مې په کار نه دي .

بل يو : اوس به بل يو راشي .

هريو : هر يو خپل کار کوي .

يو څه : يو څه ويلي دي .

په پورتنيو کلمو کې ( ټول ، ګرد ، ډېر ، لږ ، درست ، نور ) د تغير او ګردان وړ دي او د ښځينه جمعې په فاعلي او ارتباطي حالت کې يې په پای کې (و) راوړل کېږي ، لکه : ټولو ته ووايه چې راشي ، له نورو څخه کتابونه واخله او ( واړه = ځيني ) د جمعي لپاره استعمالېږي او په فاعلي او ارتباطي حالت کې يې (هې) او (يې) په (و) بدلېږي ، لکه :

د ځينو حال معلوم نه شو ، له واړو نه يې امتحان واخيست او (بل) يوائې د مفرد لپاره راځي چې په ښځينه کې يې ( بله او بلې ) وايي ، لکه : بله راغله ، بلې راته ووې ( **۳ : ۱۴۴ـ ۱۷۲**) .

پښتو پښويه د ضميرونو ډولونه داسې راپيژني :

ضميرونه د شکل او چار له مخې پر دې وروستيو ډلو وېشل کېږي :

**۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۷** شخصي ضميرونه : چې له شعر او ادب پرته يوائې د انسانانو لپاره راځي ، دوه ډولونه لري: غښتلي او کمزوري ؛ کمزوري ضميرونه د غښتليو په توپير تر مفعول وروسته راځي .

الف ـ غښتلي ( منفصل ) ضميرونه

| شخص/ګڼه | مفرد | جمع |
|---|---|---|

| | اصلي حالت | | مغيره حالت | موږ |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | زه | | ما | |
| ۲ | ته | | تا | تاسي ( لږه |
| ۳ | نرينه | دی ، هغه | ده ، هغه | دوی ( هغو |
| | ښځينه | دا هغه | دې ، هغې | |

- په يو شمير لهجو کې د درېيم جمع شخص ، مغيره حالت هم استعمالېږي ، لکه : دويو ، هغويو . له دويم هغه ، تاسو ځېل څخه ، هرگوره پخوانی مغيره حالت گڼل کېدای شي .

ب ـ کمزوري ( متصل ) ضميرونه

| شخص/گڼه | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | يې | يې |

**۷ ـ ۴ ـ ۱ ـ ۸** ملکي يا اضافي ضميرونه : چې د وگړو لپاره بشپړ او له ناوگړو ( څيزونو ، پديدو او ژويو ) څخه يواځې درېيم وگړي لپاره کارول کېږي ، ملکيت او تعلق ښيي . دغه نومځري هم پر غښتليو او کمزوريو وېشل کېږي ، غښتلي لکه نومونه په جمله کې تر مضاف له مخه او کمزوري ترې وروسته راځي .

الف ـ غښتلي ( منفصل )

| شخص/گڼه | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | زما | زموږ |
| ۲ | ستا | ستاسي ( ستاسو زيات شفاهي دی) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳ | نرینه | د ده ( هغه ) | دوی ( هغوي ) |
| | ښځینه | د دې ( هغې ) | |

ب ـ کمزوري ( متصل ) ضمیرونه

| شخص/ګڼه | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | یې | یې |

**۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۹** اشاري ضمیرونه

هغه ضمیرونه دي ، چې وګړیو یا څیزونو ته اشاره کوي او د هغو د نومونو ځای نیسي او یا ورسره لکه لنډ ستاینوم د مختاکي په توګه ملګرتیا کوي . اشاري ضمیرونه د څیزونو ، پدیدو او ژویو لپاره د ځانګړو ضمیرونو پرځای هم راځي . په بله وینا ، ځانګړي ضمیرونه یواځې په انسانانو اړه لري .

اشاري ضمیرونه د جنس ، عدد ، حالت او یواځې درېیم شخص او فاصلې له مخې ګردانېږي.

په کندهاري ګړدود کې اشاري ضمیرونه د فاصلې له مخې پنځه ډوله دي : ډېر نږدې ( دا،ها، آ) لږ نږدې ( دغه، داغه) لرې ( هغه ) ، لالرې ( هاغه ، آغه ) ، ډېر لرې ( هوغه ) .

| شخص/ګڼه | مفرد | | | | جمع | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳ـ (یواځې درېیم وګړی ) | فاصله ، ضمیرونه | | اصلي حالت | مغیره حالت | اصلي حالت | مغیره حالت |
| | لنډ | نرینه | دغه | دغه | دغه | دغو |
| | | ښځینه | دغه ، دا | دغې ، دې | دغه | دغو |
| | لر | نرینه | هغه | هغه | هغه | هغو |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | ښځينه | هغه | هغې | هغه | هغو |
| | لالر | نرينه | هاغه | هاغه | هاغه | هاغو |
| | | ښځينه | ..... | .... ې | .... | ..... |
| | ډېر لر | نرينه | هوغه | هوغه | هوغه | هوغو |
| | | ښځينه | هوغه | هوغې | هوغه | هوغو |

يادښت : د پورتنيو يووستوو اشاري ضميرونو ترڅنګ يو شمېر اشتقاقي ضميرونه هم شته ، چې د يووستوو ضميرونو پر ستيو باندې د يو لړ روستاړو په نښلونه رامنځته کېږي او پر دغه کار سربېره د ارتباطي اداتو ، مکاني ، زماني ، کيفي او ارتباطي قيدونو دنده هم ترسره کوي ، دا دی دلته د آرو او ناآرو دواړو ډولو اشاري ضميرونو ګډ جدول د استاد حبيبي له ياد شوي پارسي ماخذ کټ مټ رااخلو:

| اقسام | نزديک | نزديکتر | دور | دورتر | دورترين |
|---|---|---|---|---|---|
| ١ـ مـجــرد ( اشــاري فاعلي ، مفعولي ، اضافي ) | دا = ها = آ | دغه = داغه | هغه | هاغه = آغه | هوغه |
| ٢ ـ کمي (مقداري ) | دوني = دومره = هومره | دغوني = دغومره | هغوني = هغومره | هاغوني = هاغومره | هوغونی = هوغومره |
| ٣ ـ کيفي (تشبيهي) | داسي = دسي = هسي | دغسي = داغسي | هغسی | هاغسی | هوغسی |
| ۴ ـ طرفي | دوری | دغوری | هغوری | هاغوری | هوری |
| ۵ ـ ظرفي | دلته = | دغلته = | هغلته | هاغلته = | هوغلته = |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | دالته<br>دلې | داغلته | | هلته | هولته |

**۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۱۰ استفهامي ضمیرونه**

له آره له دویم شخص څخه د یو عمل ، پېښې ، حالت ، وګړي یا یو څه د پوښتنې لپاره استعمالېږي. زیاتره د هغو جملو او فقرو په پیل کې راځي ، چې د پوښتنې بڼه لري او یا هم د جملو د لنډون په توګه ځانته استعمالېږي .

۱) څوک ـ چا (؟) : د شخص یا اشخاصو لپاره راځي ، چې څه یې کړي وي یا یې کوي یا پرې څه شوي وي یا کېږي . د حالت له مخې ، لکه : څوک راغی ؟ څوک راغله یا راغلل ؟ څوک راغلې ؟ څوک ځي ؟ چا وویل ؟ څوک وایي ؟ چا ډوډۍ وخوړه ؟ څوک یې وواهه ؟ څوک وهل کېږي ؟ څوک د مبهم ضمیر په توګه هم استعمالېږي . لکه : څوک مې ولید . نن یو څوک راځي چا ووهلم .

۲) کوم (؟) : د شخص یا اشخاصو ، څیز یا څیزونو ترمخه راځي او د همدغو کیفیت ، کمیت کار یا نور څه پوښتي . « کوم » د دوو نورو استفهامي ضمیرونو پر خلاف نه تش ځانته راځي بلکې له نوم یا پېژند سره هم مل کېږي او ټاکنه یې کوي او بله دا ، چې پر حالت سربېره د جنس له مخې هم ګردان لري ، لکه : په دې وروسته جملو کې :

کوم سړی راغلی ؟ کوم سړي وویل ؟ د کوم سړي رنګ ژېړ وي ؟ کومه ښځه راغله ؟ کومې ښځې وویل ؟ کومو ښځو ـ سړیو وویل ؟ د کومو ښځو ـ سړیو رنګونه ژېړ وي ؟

کوم له څیزنومو او مبهم ضمیرونو سره د مبهم ضمیر ، په بله وینا ، ناپیژند دنده هم راخپلوي.

۳) څه (؟) : د مختاړي (Prepositive ) په توګه د يوې کلمې ، يا نوم ترمخه راځي او کيفيت کميت چارونقش يا نور څه يې پوښتي او زياتره په جمع او جنس نوم پورې اړه لري ، بې له دې چې خپله بڼه واوړي ، لکه : دا څه دی ؟ دا څه دي ؟ څه يې نرخ دی ؟ څه يې ارزښت دی ؟ دا څه مانا لري ؟ څه زور لري ؟ څه موټې دې راباندې خرڅ کړې ؟

د يو عمل په تړاو د « ولې » ، « څه راز» يا « د څه لپاره » پرځای ، لکه : څه دې وکړل ؟ څه دې راوړل ؟ يا د خوشحال خټک په دې شعر کې : زه خو شرابي يم شېخه څه راسره جنګ کړې ....

يادښت : د نورو ډېرو ژبو غوندې پښتو د استفهامي ضميرونو ترڅنګه يو شمېر استفهامي قيدونه هم لري: زماني ، لکه : کله ؛ مکاني ، لکه : چېرې ؛ کيفي ، لکه : څنګه ؛ کمي ، لکه: څو، څومره استدلالي لکه : ولې او داسې نور .

۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۱۱ سمتي اداتي ضميرونه

هغه درېګوني ضميرونه دي ، چې له آره د يوه فعل او کار لوری څرګندوي ، خو په ترڅ کې له ځينو فعلو سره د ځانګړو ضميرونو پر ځای راځي او يا هم ورسره مختاړی کېږي او هغه هم د متعدي فعل په ترڅ کې له بالواسطه مفعولي حالت سره د فعل لوری ښيي ، چې هر يو يې د شخص ښکارندويي کوي او له شخص پرته نور ګرداني اړخونه نه لري . دغه سمتي ادات ، په بله وينا ، سمتي ضميرونه نږدې له ټولو فعلونو سره برابر مختاړي کېدای شي ، خو له يو ټاکلي شمېر سره د نه جلاکېدونکو فعلي سابقو په توګه راځي ، داسې ، چې د متعدي فعل په توګه يې د يوه (فاعل) په وړاندې درې ( بالواسطه مفعولونه) يا د فعل موخې ټېکاو مومي ، لکه په راکول درکول ـ ورکول ( راکوي ـ درکوي ـ ورکوي ) يا راتلل ـ درتلل ـ ورتلل راوړل ـ درووړل ـ وروړل.

په يوه نيمه محاوره کې د درو واړو اشخاصو لپاره يواځې « را » اشتقاقي توکی ګرځي ، لکه په رانيول (پېرل) (رانيسم ـ رانيسو ، رانيسې ـ رانيسئ ، رانيسي) کې ؛ په ( ښه راتلل ) او (بد

راتلل) کې بیا د ځانګړو ضمیرونو پرځای ملکي یا اضافي ضمیرونه کارول کېږي ( زما بد راځي ـ بد مې راځي ، ستا بد راځي ـ بد دې راځي ... ) په جوړه ترکیب ( راکړه ورکړه ) او (راشه درشه) کې هرګوره له ډېر پخوا څخه همداسې ویلې شوي دي . همداسې یې په فعلي صفت . لکه راتلل ، راغونډ (سره یوځای ) کې هم در واخله . داچې په عمومي ډول درېواړه ادات ولې له فعل سره مختاړ کېږي ، لامل یې د اړوند فعل د لوري ښه څرګندونه او د اړوندو ضمیرونو سپمونه ده ، لکه : راوسپاره ( = ماته راوسپاره ) ، دروسپاره (= تاته وسپاره) وروسپاره ( = ده یا هغه ته وسپاره ) او داسې نور .

| شخص/ګڼه | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | را | را |
| ۲ | در | در |
| ۳ | ور | ور |

**۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۱۲** اداتي ضمیرونه

چې له اداتو ، په بله وینا ، له سربلو په تېره اوستربلو څخه منځته راځي او د اړوندو اداتو له چار او دندې سره سم د ضمیرونو ځای نیسي :

۱ . پکې ( در آن ـ ها ) : چې د ( ورکې ) د همچاري په توګه دریېم ( مفرد ، یا جمع ښځینه یا نرینه ) شخص په نااوښتي ډول په مکاني حالت کې ښیي ، لکه :

باغ وای د ګلونو (پکې) ناست وای زه او ته ( خوشحال )

د کندهار خواته یې پر ځای (پکښې) او په یو نیم ګړدود کې یواځې (کې) هم په همدغه مفهوم استعمالیږي ، چې یواځې وروستی ډول (کې) یې د وزن او یا هم قافیې د اړتیا له مخې په منظومه وینا کې راتلای شي .

۲ . پسې ( بسوی او ـ ايشان ) : چې د ورپسې د لنډيز په توګه دا هم د پاس په څير درېيم شخص په مکاني حالت کې ښيي ، لکه : د زهرو ګولی خورم (پسې) .
(پسې) د مخکړ په توګه هم لکه د ځينو فعلونو پرله پسېوالی څرګندوی ، لکه : پسې تلل .
۳ . باندې ( ورباندې ) : د "ورباندې" د لنډيز په توګه په هماغه پاسني ډول درېيم شخص په مکان او هغه هم په استعلايي حالت کې ښيي ، لکه :
ګل وای غوړېدلی ( باندې ) ملاست وای زه او ته (خوشحال)
۴ . پرې ( برآن ـ برآنها ...) : دا هم "ورباندې" يا په بله وينا ، "ورباندې" ته ورته دنده پرځای کوي ، لکه: ما پرې سر کېښود ، پيسې مې پرې پور دي .
۵ . پې (به آن) : چې ( په او پرې ) هم ويل کېږي ، په يو آلي حالت کې د يوه نوم ځای نيسي او له (پرې) سره يې په دې جملو کې توپير کولای شو :
زه ( په پښتو = پې ) ليکنه کوم ( من به پښتو می نويسم ) ، زه ( پر پښتو = پرې ) ليکنه کوم ( من درباره پښتو می نويسم ) ، په کندهاري ګړدود کې "پرې" "پر" او پې "پر" ويل کېږي او په کره ليکنۍ پښتو کې دواړه د "پرې" په بڼه دود شوي دي .
٦ . ترې (آز آن ـ از آنها ...) : چې د ورځخه ( ورنه ، ورځنې ) د يوه لنډ انډول په توګه يو نوم په مفعول منه او مکاني او هغه هم په استفلايي حالت کې ښيي ، لکه : ماترې لاندې يا کښته کېښود قلم مې ترې واخيست. يو لهجوي ډول يې "ترېنه" دی چې معياري ارزښت نه لري .
۷) ځنې : کټ مټ د "ترې" او ورځنې ( ورځخه ، ورنه او ترېنه ) د هممانيز او همچاريز په توګه کارول کېږي ، چې په ناکره ډول له "ځينې" يا کندهاري تلفظ "ځينې" سره يو ډول استعمالېږي. له سمتي ضميرونو ( را ، در ، ور ) سره ترکيبونه هم جوړوي .
۸) له ( را ـ در ـ ور ) سمتي ضميرونو سره د بېلابېلو اوستربلو په ملتيا ترکيبي اداتي ضميرونه په بله وينا ، ترکيبي سمتي ضميرونه رغوي ، د لومړي شخص لپاره ، لکه: راسره ، راکره ، راځخه راځنې راکې ، راباندې ، رالاندې ، راپسې ، راپورې ، راته ، همداراز له "در" سره د دويم او له

"ور" سره د درېيم شخص لپاره هرگوره ( را، در، ور ) له هغو درغلي اوستربلو ( ) سره چې د "يې" ، "د" او "لکه" سربلونو پر وړاندې تيکاو مومي ، دغه راز ترکيبي ضميرونه نه رامنځته کوي .

"پرته" يواځينی آر اوستربل دی ، چې ورته رغاونې (راپرته ، درپرته او يا ورپرته ) نه شي کولای "کره" بيا د "د" د وستربل په توگه په دغو رغاونو سره خپل اصليت ثابتوي .

(۵) او (٦) دواړه ډوله ضميرونه په بدلو يا ناآرو او يا هم ځانتيا ضميرونو کې راځي . که "چې" د ارتباطي ضمير تشه ډکه کړي ، په ورته ضمير کې شمېرل کېږي ، په همدې توگه "چې" يو نيم ارتباطي ادات سره ترکيبي ضميرونه رغولای شي .

**۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۱۳** ارتباطي ضميرونه او پښتو

پښتو د نورو نږدې خپلوانو ژبو په څېر د اروپايي ژبو ورته ارتباطي ضميرونه او (ارتباطي قيدونه) نه لري ، بلکې پرځای يې له نومونو يا نورو ضميرونو ( ځانگړو ضميرونو ، ملکي ضميرونو اشاري ضميرونو ... ) څخه داسې کار اخلي ، چې زياتره يواځينی ارتباطي ادات "چې" يې اړوندو ژبنيو واحدونو ، لکه مسنداليه وو او مسندونو سره تړاو ورکوي او په دې ډول له دويمې جملې سره لومړۍ جمله ملگرې کوي ، چې همدغه لومړۍ جمله بيا ارتباطي جمله بلل کېږي لکه : زلمی راغی چې زمری ووينې ، زمری راغی چې ما ووينې .... د قيدي اړيکو د تينگولو لپاره په اړوندو ملو جملو کې له نومونو يا ضميرونو سره يا غبرگ غبرگ قيدونه جوړه کېږي او يا په يوه کې "قيد " راځي او په بله کې اړوند ارتباطي قيد + "چې " يا يواځې "چې" يا هم صفر ، لکه : "څنگه غر " (دی) ، "هسې (يې) کربوړی " (دی) "هغه سړی بيا " راغی "چې پرون مې" ليدلی وو . " ما دومره " کار وکړ ، "څومره چې مې" کولای شو ، " کله چې ته " راغلې "زه هم " راځم . "زه هله" درځم ، " کله چې ته" راشې ... ؛ په دې توگه " چې " هم د ارتباطي ضميرونو تشه ډکوي او هم د ارتباطي قيد هغه .

پښتو ځانګړي ارتباطي ضميرونه پر چارو دندې سربېره د شکل له مخې هم له اروپايي هغو سره توپير لري او هغه داچې ، لکه چې وويل شول ، زياتره په (لومړنۍ) ضمني جمله کې راغلي ضميرونه د (دويمې) آرې په سر کې له راغلي ارتباطي ادات "چې" سره د تړاو په مټ (نه په يواځيني ځان) د اروپايي ارتباطي ضميرونو يو مقايسوي انډول رامنځته کوي . خو که "چې" له اړوندو ضميرونو ، هغه هم له مبهمو ضميرونو سره پتليزه ونښلول شي ، لږ تر لږه له شکلي پلوه د نومړو ارتباطي ضميرونو لا ښه انډولتيا سمبالولای شي ، لکه : څوک چې څه چې ... يا له غبرګو يا درو مبهمو ضميرونو سره ، لکه: هرڅوک چې ، هرڅه چې ، هر هر څه چې ... ؛ د (نا) پيژند " يو " په ملتيا ، لکه : يو څوک چې . هر يو څوک چې ... ، د اشاري ضميرونو هغه ، هغو هوغه ، هوغو... ) په ملتيا ، لکه : هغه څوک چې ، هغه څه چې ، هر هغه څه چې ... او ورسره ورسره د " يو " په سرباري کولو ، لکه : هرهغه يو څوک چې ، هر هغه يو څه چې او داسې پسې نور .

همداسې د اروپايي ارتباطي قيدونو په وړاندې پښتو دا هم درواخله چې له استفهامي قيدونو سره يې "چې" په پتليزېدو ښه ځواب ويلای شي ، لکه : چېرې چې ، څنګه چې ، ولې چې ، کله چې ، يا : هرچېرې چې ، هرڅنګه چې ، هرکله چې او يا هم : يو چېرې چې او داسې نور . خو بياهم خپله خبره راغبرګوو ، چې هم دغه راز ترکيبي ارتباطي ضميرونه او هم ارتباطي قيدونه د ضمني جملو په سر کې راځي ، چې هغه هم په کره توګه تر آرې جملې له مخه راوستل په کار دي ، نه د اروپايي هغو په پېښو تر آرې جملې وروسته . دادی دلته د پوهاند "ربنتين" د ربطي ضميرونو ځيني ورته ترکيبونه له بېلګو سره رااخلو ، که څه هم اړوندې څرګندونې يې زموږ له هغو سره پوره سمون نه لري ، مبهم ضميرونه يې استفهامي ضميرونه بللي ، نه يې د اروپايي ارتباطي ضميرونو د پېښو يادونه کړې او نه يې د همځنګو ارتباطي قيدونو چې د اردو له لارې زياتره "پښتونستانۍ" پښتو تر اغېز لاندې راوستي ده:

| ربطي ضميرونه | مثال |
| --- | --- |

| | |
|---|---|
| څوک ، چې | څوک ، چې نیکي کوي ، هغه به ثواب مومي . |
| چا ، چې | چا ، چې کار وکړ ، ګټه د هغو ده . |
| څه ، چې | څه ، چې کرې ، هغه به رېبې . |
| هرڅوک ، چې | هرڅوک ، چې کوښښ کوي ، کامیابېږي . |
| کوم ، چې | کوم ، چې دې په کار وي ، هغه واخله . |
| هرڅه ، چې | هر څه ، چې وایې ، هغه وایه . |
| هر ، چې | هر ، چې ما غوندې وي ، څه به خوب کا . |
| هر یو ، چې | هر یو ، چې دې په کار وي ، در به یې کړم . |
| څومره ، چې | څومره ، چې خوړلی شې ، هغه وخوره . |
| ځینې ، چې | ځینې ، چې راغلي وو ، هغوی دلته دي . |
| څو ، چې | څو ، چې ته غواړې ، در به یې کړم . |

داسې برېښي ، چې د اروپایي ژبو ربطي ضمیرونو هم له ورته ربطي اداتو پرمختیا موندلې وي لکه: انګریزي ( that ) چې ربطي ادات پر دندې سربېره وګړیز او ناوګړیز تړاو هم پر غاړه اخلي ، یا په بله وینا، هم د څیزونو د ربطي ضمیرونو پرځای راځي هم د اشخاصو پرځای ، لکه:

Where is the cheese that (= which) was in the fridge?

" هغه " پنیر چېرې دی " چې " په یخچال کې وو ؟

Do you know the woman that (=whom) Tom is talking to?

ته " هغه " ښځه پېژنې " چې " تام ورسره غږېده .

هرګوره په دغو پښتو انډولو کې ځکه له اشاري ضمیر " هغه " کار اخیستل شوی ، چې د انګریزي the غوندې پېژند ( حرف تعریف ) نه لري . که څه هم سلاوي ژبې ، روسي ، چکي پولینډي ... هم پیژند نه لري ، خو ربطي ضمیرونه په بشپړ ډول کاروي . په هر ډول د دغو ژبو"

ليکوالو" په دغه چم سره خپل کار اسان کړی او هغه دا چې د جملو د ملتيا لپاره يواځې په هماغه يوه کې د ربطي ضمير (صله) راوړي او په بله کې بل ربطي ادات ( موصول ) . نو که په پښتو کې د دغو ضميرونو ړندې پېښې وکړو ، نو د اردو غونډې به ترې يوه مصنوعي ژبه جوړه شي . د بيلګې په توګه د پورتنيو انګريزی جملو ټکي پر ټکي ژباړه خومره بې معنا او بېخونده برېښي ، که څه هم د ارتېکل پرځای له "هغه" هم کار اخيستل شوی دی او که نه نوره هم پسې مسخه کېده :

"هغه" پنېر چېرې دی ، (کوم) چې په يخچال کې وو ؟

"هغه" ښځه پېژنې ، ( له چا سره ) چې تام غږېده ؟

په پښتو کې دا بېلګې هم لږې نه دي ، چې ځانګړي ضميرونه يا ربطي ادات "چې" د دويمې (آرې) پرځای د لومړۍ جملې يا معترضه په سر کې راشي او ربطي جملې رامنځته کړي ، بې له دې ، چې د اروپايي ارتباطي ضميرونو يا ارتباطي ادات دريځ راخپل کړي ، لکه: په دې متلو کې چې له ربطي ادات " چې" سره پيلېږي .

"چې" ځې ځې ، ابازو له به راځې . "چې" د ړښتياوو وار راځي ، دروغو به کلي وران کړي وي .

يا په دې څلور جمله يې متل کې ، چې لومړۍ او درېيمه يې ارتباطي جملې دي :

"چې" ستړی يې ، پر شا به دې کوم ـ "چې" نه (يې) خورې ، څه به دې کړم .

او په همدې (لومړني) دريځ کې ځان سره قيد ، څيزنوم او ضمير هم مختاړی يا روستاړی کوي له قيد سره ، لکه :

"چېرې ، چې" اوسې ، په خوی به د هغو سې .

له څيزنوم سره ، لکه :

" (د) ميړې ، چې " مرګ راشي ، وازره وکړي .

له ضمير سره ، لکه :

” څوک ، چې“ خوب کوي ، نر کټي زېږوي .

”څه ، چې “ کري ”هغه“ به رېبي .

دغلته گورو چې ”چې“ په هره بېلگه کې د ضمني ربطي جملې او بيا همزمان ، معترضه جملې د رغنده جز په توگه راغلې ، معنا دا چې د اروپايي ژبو په پښتو ژباړه کې کله کله دېته اړتيا پېښېږي چې د ربطي ضميرونو او ورسره ورسره ربطي قيدونو د ټکي پر ټکي را اړونې د مخنيوي لپاره له معترضه او يا هم جلا جلا خپلواکو غبرگو يا گډو جملو زيات کار واخيستل شي ، لکه:زمرى چې کور ته راغی ، پلار يې وليد يا زمرى کور ته راغی او پلار يې وليد ....ان د ډېرو کوچنيو فقرو ، يا په بله وينا ، کلمو او نومونو په را اړونه کې د سرباري ربطي جملو کارول هم ضروري برېښي ، که د معترضه په بڼه وي او يا د پرله پسې جلا جلا فرعي يا اصلو جملو په بڼه . حال دا چې په اروپايي ژبو کې د يوه پېژند يا ارتېکل لکه انگريزي the او يا هم د يوه ننگښي (،) يا بېلنده ليکې ( ـ ) په مټ دغه راز اړيکي ټينگيږي ، لکه:

Tom, the teacher, came out of the school.

تام چې ښوونکی دی ، له ښوونځي راووت .

په پارسۍ کې ، سره له دې ، چې د پښتو غوندې اروپايي ورته شکلي ادات نه لري ، تر ډېره ځايه د ربطي ضميرونو له پېښو ډډه شوې ده او د پښتو ”چې“ انډول ”که“ يا ”تا“ د ربطي ضمير پرځای کاروي.

دا چې د پورتنۍ انگريزي جملې په بېلگه پکې د يوې نيمې پېښې دود هم رامنځته شوی دی ، بياهم د ټاکلو ارتباطي ضميرونو هومره زيان نه ورپېښوي ، لکه : د اکرم عثمان د ”بازگشت“ داستان په سر کې:

... چند روز ميشد که ببو ، مادر واسع شوهرش را از دست داده بود ( پخوا په پښتو او پارسي دواړو ژبو کې دغلته د ننگښي (،) پرځای له عربي ”يعني“ کار اخېستل کېده ) .

په کره ليکنۍ پښتو کې کله کله د لنډيز او اسانتيا د آر له مخې د داسې عبارتونو ، کلمو ورته ترړاو يوبل راز ترسره کېداى شي ، لکه : د افغانستان په پلازمېنه ، کابل کې ، د زمري په کور، شېرشاه مېنه کې ... .

چې د بېلګې په توګه د لومړي غونډ يا سرليک انګريزی په دې ډول راځي :

In Kabul, the capital of Afghanistan.

پاس د راوړې پارسي بېلګې پښتو ژباړه هم داسې کره راځي :

... ځو ورځې کېدې چې د واسع مور ، ببو خپل مېړه له لاسه ورکړی وو ، د صديق کاوون دا پارسي پېښې "زوی ته مي برمل ته " داسې سمون موندلای شي :

خپل زوی ، برمل ته مې ، يا : خپل برمل زوی ته مې .

په هره توګه په دغو بېلګو کې هم لېدل کېږي چې قيدي ، اسمي او ضميري اړيکي هماغه "چې" تينګوي ، نه پخپله قيدونه ، اسمونه يا ضميرونه ؛ معنا دا چې بياهم له ارتباطي ضميرونو سره کار نه لرو. ان په وروستۍ بېلګه کې "هغه" اشاري ضمير چې د (څه) مبهم ضمير استازي کوي هم د اروپايي ډوله ربطي ضمير کټ مټ انډول کېداى نه شي . په "مېړې چې" او "څوک چې" کې "مېړی" او "څوک" هم ارتباطي ضميرونه نه شي ګڼل کېداى ، ځکه چې د خپلو اړيکو واک يې د "چې" په لاس کې دي . همدا "چې" ده چې "مېړی" او "څوک" يې د (مسند اليه وو) په توګه د دواړو ملو جملو له ( مسندو ) سره نښلولي دي . څوک ، هغه او داسې نور ضميرونه يا اسمونه د "چې" په مټ په دغه راز يوه چاپېريال کې د اروپايي ارتباطي ضميرونو تشه ډکوي ، نو تکرار ته يې هېڅ اړتيا نشته .

په دې وروسته درې جملوي لنډۍ کې د ړومبۍ نيمه کې ړومبنۍ ټوټه يوه ارتباطي جمله ده او دويمه ټوټه آره او بيا دواړه د وروستۍ نيمکۍ ، يا په بله وينا ، جملې لپاره څېرمه يا ارتباطي جملې دي.

دلته څیزنوم له "چې" سره مل شوی او همدغه "چې" ورته هم له "مري" سره د فاعل په توگه تړاو ورکړی او هم یې ورته له بلې جملې سره اضافي تړاو . له درېیمې جملې سره یې د اړوند مسنداليه ( په یوه لحد کې خاورې شونه ) د مرکب مسند یو توک گرځولی دی :

"چې جانان" مري ، ما یې کفن کړې

"چې" په یوه لحد کې دواړه خاورې شونه

د ړومبی "چې" یو بلونج شرطیه "که" هم کېدون درلودای شي .

دا چې په پښتو کې په شکلي ډول د ارتباطي ضمیرونو پرځای ربطي ادات کارول کېږي ، تر اړوند ( اروپایي) ژبو پکې د دغو اداتو رنگارنگي او تکرار زیات دی او په شکلي او ناشکلي ډول د ورته دندې لپاره وېړې لارې چارې پر کار اچوي ، نو اړوندې پېښې یې گردسره نحوي ونگه ورمسخ کوي ، لکه :

غرزی کندهار ته ولاړ، "څوک چې" هلته خپلوان وگوري .

--------------------- ، "چېرې چې" هوا توده ده.

--------------------- ، "له کوم ځایه" چې هېلمند ته ځي .

--------------------- ، "کله چې" پر کابل واوره وشوه .

--------------------- ، "له چا سره چې" ډېر کتابونه ول .

... .... .... .... ...... .......

ما یو لیکانی واخېست ، "کوم چې" ښه کار کوي .

-------------------- ، "کوم یوه ته چې" مې اړتیا وه .

-------------------- ، "په کوم چې" لیکل کوم .

....... ........ ......... ......

کاروزیار مې خوښېږي ، "کوم" یا "څه چې" نیکمرغي راولي .

.... .......... ....... ........

ما دومره غنم وپېرل ، "څومره چې" مې پېرلای شول .

------------------ ، "کله چې" مې ورته اړتيا پيدا شوه .

------------------ ، "له کومو چې" ښه ډوډۍ پخېږي .

------------------ ، "په کومو کې چې" خاورې شګې نشته .

سمې بڼې يې :

غرزی کندهار ته ولاړ چې خپلوان وګوري .

غرزی "ځکه" کندهار ته ولاړ "چې هلته" هوا توده ده .

غرزی "د دې لپاره" کندهار ته ولاړ "چې بيا" هېلمند ته ولاړ شي .

يا : غرزی کندهار ته ولاړ او له هغه ځايه بيا هېلمند ته ځي .

غرزی "هله" کندهار ته ولاړ "چې" پر کابل واوره وه .

غرزی کندهار ته ولاړ "چې" ډېر کتابونه ورسره ول .

......          .....          ......          ......

ما يو ليکانی واخيست چې ښه کار وکړي .

ما يو ليکانی واخيست چې مې ورته اړتيا درلوده .

ما يو ليکانی د دې لپاره واخيست چې پې ليکل وکړم ؛ يا : ما يو ليکانی د ليکلو لپاره واخيست.

.....          .....          ......          ......

کاروزيار مې "په دې" خوښېږي ، "چې" نېکمرغي راوړي .

ما "دومره" غنم وپېرل "چې" مې پېرلای شول .

ما غنم "هله" وپېرل "چې" مې ورته اړتيا پيداشوه .

ما "داسې" غنم وپېرل "چې" ښې ډوډۍ "ترې" پخېږي .

ما "داسې" غنم وپېرل "چې" خاورې شګې "پکې" نشته .

۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۱۴ انعکاسي ضميرونه

هغه ضمیرونه دي ، چې د یوه فعل هم فاعل اوسي او هم مفعول . په پښتو کې دا راز ضمیرونه له نومونو یا ځانګړو ضمیرونو سره د "ځان" په ملګرتیا کولو لاسته راځي ، چې زیاتره په همدې یوه مفرده بڼه هرځای راتلای شي ، لکه : زلمي ځان ژوبل کړ، زلمي او زمري ځانونه ژوبل کړل ؛ هغه ځان ژوبل کړ ؛ هغوی ځانونه ژوبل کړ . د ډېر وضاحت لپاره له "ځان " سره "خپل " هم ملتیا کوي ، لکه : هغوی "خپل ځان" وژغوره ، که څه هم "ځان" له آره د "خپل" ځایناستی او همپازی دی .

**۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۱۵** ابهامي ضمیرونه

چې د یوه نامعین شخص یا څیز پرځای راځي او که د نومونو مختاړي شي ، پر مختاکو صفتونو بدلېږي او که بیا په مسند کې راشي ، نو د قیدونو کار پرغاړه اخلي ، په بله وینا ، د فعل مختاکی ګرځي. مبهم ضمیرونه هله یووستوی کارول کېدای شي چې ترمخه یې نږدې پر نږدې څیزنومونه یا نور ضمیرونه راغلي وي . دغه ضمیرونه د بېلابېلو دندو له مخې په لاندې ډولو دي :

۱ . هر : چې زیاتره په مفرد اړه لري او د جنس او حالت له مخې لږو ډېر ګردانېږي ، د مختاکي په دریځ کې ، لکه : هر زلمی ، هره پېغله ، هر وخت ، هره ګنډۍ ، هرې پېغلې ... . له جمع سره لکه : هرلس هلکان او هرلس نجونې سره یوه یوه لوبډله جوړوي .

په اوښتي جمع کې یې ګرداني ـ و ملګری کېږي ، لکه : هرو پنځو زده کوونکو ته یو کتاب ورسېد. یا زه په هرو دوو ورځو کې (یوځل) لمبا ته ځم . د ضمیر په توګه له (نا) پېژند "یو" او ځینو نورو مبهمو ضمیرونو سره په ملتیا کې راڅرګندېږي .

۲ . بل : یواځې د شمېرېدونکي مفرد نوم پرځای راځي او یا ورسره د اشاري ضمیر غوندې ملګرتیا کوي لکه : بل زلمی ، بله پېغله ، د بل زلمي ، د بلې پېغلې ... . د ضمیر په ډول ، لکه: یو سړی راغی ، پسې "بل" راغی .

”بل“ د نه اوښتونکي قيد او بيا له ناپيژند ”يو“ سره د ربطي قيد په توگه د ربطي اداتو جوړه هم رغوي .

۳ . نور : د بل سرچپه يواځې د شمېرېدونکي جمع ، او نه شمېرېدونکي مفرد او جمع جنس نوم ښکارندويي او ملگرتيا کوي او څه نا څه بشپړ گردانېږي ، لکه: نور هلکان ، نورې نجونې نور غنم ، نوره وسپنه ، نوره خاوره ، نورې اوبه ، د نورو هلکانو ، د نورو پېغلو ، د نورو غنمو د نورې وسپنې ، د نورې خاورې ، د نورو خاورو ، د نورو اوبو ... .

له مفرد يا جمع نرينه مبهم ضمير ( څوک ـ چا ) سره په همدې آره بڼه راځي او له ښځينه سره گرداني بڼې (نوره ـ نورې ) راخپلوي .

”نور“ هم د ”بل“ غوندې د قيد دنده راخپلوي ، خو کله د اصلي قيد او کله هم د اوښتونکي قيد په توگه، په نه اوښتونکې بڼه ، لکه : زرمينه (نور) مرستې ته اړتيا نه لري ؛ زرمينه خپلې ستونزې (نور) خپله هواروي ... په اوښتې بڼه ، لکه : زرمينه مرستې ته (نوره) اړتيا نه لري ؛ زرمينه خپلې ستونزې (نورې) پخپله هواروي .

هرگوره (بل) او (نور) دواړه صفتي او قيدي چار هم راخپلوي ، لکه : زمری (بل) واده نه کوي زمری (بله) ښځه نه کوي ؛ زرين له چا سره (نور) جنگ يا جنگونه ، نوره شخړه يا نورې شخړې نه کوي ... .

۴ . ټول : زياتره په جمع ، او (مفرد او جمع ) جنس نوم اړه لري ، معنا دا چې د جنس ، حالت او څه ناڅه عدد له مخې گردانېږي او له کندهارۍ پښتو پرته هماغسې اوړون مومي ، لکه : ټول هلکان ، ټولې نجونې ، ټول تېل ، ټوله خاوره ، ټولې خاورې ، ټولو هلکانو ، د ټولو هلکانو ، د ټولو نجونو ، د ټولو تېلو د ټولې خاروې ، د ټولو خاورو ... .

له عام نوم ډوله او نه شمېرېدونکو مفردو نومونو سره د ”گرد“ يا ”درست“ په معنا ، زياتره د صفت په دريځ کې ، لکه : ټول ولس ، ټول ښوونځی ، ټول ځان ، ټوله ونه ، ټول غم ، ټول هېواد ټول کتاب ، ټوله نړۍ ، ټوله سيمه ... .

٥ . واړه : د (ټول) مترادف دی ، لکه : واړه هلکان ، واړې نجونې ، واړو هلکانو ، واړو نجونو واړه خاوره واړې خاورې ، د واړې خاورې ، د واړو خاورو ، د صفت یا په بله وینا ، د قید په توگه ، لکه : د خوشحال په دې شعر کې :

واړه عشق دی ، چې یې سر راته گیاه کړ .

٦ . دواړه : تل د شخص تثنیه ده او په جنس او حالت اړه لري ، لکه : دواړه هلکان ، دواړې نجونې ، د دواړو هلکانو ، د دواړو نجونو ... .

٧ . څه : پر استفهامي ضمیر سربېره یو ناوښتونکی مبهم ضمیر هم دی ، لکه : څه مې ولیدل ، څه نشته ، چې نه کار ـ هلته څه کار ! "څه" له نورو مبهمو ضمیرونو او ځینو صفتونو سره ترکیبي مبهم ضمیرونه جوړوي ، لکه : بل څه نورڅه ، هرڅه ، هېڅ څه ، لږ څه ، ډېرڅه ؛ همدارنگه یې له پېژند (یو) سره بې ثباتي یو څه کمېږي ، لکه: یوڅه . د تعریف ادات په دریځ کې له جمع یا نه شمېرېدونکي سره لکه : څه خلک یا څه اندېښنه نشته . په "پر ما څه ورانه ، څه ودانه" او "څه غنم لانده څه ژرنده پخه" غوندې متلو کې "څه" د قید او بیا قیدي ربطي ادات دریځ غوره کوي .

٨ . ځینې : د جمع شمېرل کېدونکي نوم ښکارندویي کوي ، معنا دا چې د گڼې له مخې تل جمع راځي او مفرد نه لري او په دې توگه یواځې د جنس او حالت له مخې گردانېږي ، د مختاکي په دریځ کې ، لکه : ځینې شاگردان ، ځینې شاگردانې ، ځینو شاگردانو او د ضمیر په توگه ، لکه : ځینې راغلل ، ځینې راغلې ، ځینو خپله دنده ترسره کړه .

٩ . هېڅ : د یوه ناټاکلي څیز یا څیزونو نشتوالی ښیي او نه گردانېږي . د ضمیر په توگه ، لکه: هېڅ نشته هېڅ نه اخلم ، هېڅ نه خورم ، هېڅ مو ونه کړل ... ؛ د مختاکي په توگه ، لکه: هېڅ هلک ، هېڅ هلکان ، هېڅ نجلۍ ، هېڅ نجونې ، هېڅ هلکانو ، هېڅ نجونو ، هېڅ غنم ، هېڅ غنمو ... . هېڅ له پیژند (یو) ، او زیاترو مبهمو ضمیرونو سره د لومړي ټوک په توگه ترکیبي مبهم ضمیرونه منځته راوړي ، لکه : هېڅ یوه هېڅه (هېڅ څه ) ، هېڅ کوم ، هېڅ بل ، هېڅ نور ،

هېڅ څوک ( هېڅوک) ، يا په درې توکيزه ترکيب کې لکه : هېڅ کوم يو ، هېڅ کوم څوک يا په څلور توکيز ترکيب کې ، لکه : هېڅ کوم يو نيم ، هېڅ کوم يو بل ... په "هېچا" کې يې ـ څ له چ سره همرنګ شوې او يکې مدغم شوې ده . "هېڅ" يو قيد هم دی ، لکه : زمری هېڅ نه راځي "هېڅ پر هېڅ" بيا يو منفي ټينګاري قيد دی .

١٠ . څوک : هم پر استفهامي ضميرونو سربېره يو مبهم او بيا په ګډه مفرد او جمع ، نرينه او ښځينه ضميرونه هم دي چې هم د څېزنوم ښکارندويي کوي او هم د (نا)پېژند (ارتېکل) لکه: نن څوک راځي څوک يو کار کوي ، څوک بل . چا مې کتاب واخيست ، څوک سړی راروان دی ، څوک ښځه مې وليده. په مغيره حالت ، لکه : چاته مې کتاب ورکړی دی ، خو اوس مې هېر دی ، له چانه مې کتاب واخيست بيا مې هېر شو ، خپل کار په چا نه کوم، زلمی چا سره په يوه لاره نه ځي ، زه نه څوک غندم نه پر چا کار لرم ، څوک چې بل چاته کوهي کېنې ، پخپله يکې لوېږي ، له ما سره د چا څه کار دی ، په شپه کې چاته ورتګ ښه نه دی . په "چا بېلوره مې د مينې نرۍ ورانه کړه ، څوک دښنه راته په لار کې ناست دي" غونډې ورته جملو کې "چا" او "څوک" د مبهم ضمير په توګه د "کوم" همپازی کېږي ؛ يا لکه پېښوريان چې وايي : چا ظالم مې ژبه پرې کړه ؛ د رحمان بابا په شعر کې يې هم څرک لګي .

له پېژند (يو) او ځينو نورو مبهمو ضميرونو سره هم ترکيبي مبهم ضميرونه جوړوي ، لکه : يو څوک هرڅوک ، هېڅوک ، بل څوک ، نور څوک ، څوک سړی ، کوم څوک ، کوم چا .

١١ . سړی : پر څېزنوم او صفت سربېره يو مبهم ضمير هم دی ، لکه : سړی دې هڅه کوي چې څوک ترې ونه ځورېږي . بايد د سړي له لاسه داسې کار ونه شي ، چې وروسته پرې پښېمان شي . دلته د سړي هره هيله نه پرځای کېږي . سړی دې سړي ته ګوري او بيا دې ورسره هماغسې چلند کوي ، لومړی دې سړی سړي ته پور نه ورکوي او که ور يې کړ ، نو بيا دې ترې ژر نه غواړي . له ځينو نورو مبهمو ضميرونو سره ترکيبونه هم جوړوي او په دې توګه يې نور هم پسې مبهم کوي ، لکه : يو سړی دې خواته رادرومي ، يوه سړي ته راز ويل په کار نه

دي ، هر سړی ( هو ، هر سړی پیدا دی خپل خپل کار لره کنه ـ خوشحال ) ، هېڅ سړی نه ښکاري ، سړی سړی سم کار ته نه پرېږدي ، له خوازک پرته بل سړی مې ونه لید څوک سړی زموږ خواته راځي ، کوم سړی چې د سړي نه خوښېږي ، څه په کار چې پرمخه ورځي ، څه سړي غونډې رادرومي ، یو نیم سړی خپل ژوند ته پام نه لري ، کوم نیم سړی مې ونه لید ، کوم یو نیم سړی رانغی ... .

۱۲ . پلانی او بیستانی هم له عربي او دري ( فلان ـ بستان ) څخه پښتو شوی مبهم ضمیرونه ګڼل کېږي.

نور بدلګري مبهم ضمیرونه چې له آره قیدونه ، په تېره ربطي قیدونه ، استفهامي قیدونه پېژندچار پرځای کوونکی شمېرنوم (یو) ، په یووستوې بڼه یا هم له دغو توکونو سره په ملتیا هم یو لړ ترکیبي مبهم ضمیرونه منځته راوړي .

۱۳ . "څو" : چې له آره زماني او استفهامي قید دی او د مستقیمې او غیرمستقیمې پوښتنې لپاره راځي. د مخټاکي په چار کې ، لکه : "څو" پیسې مې په کار دي ، څو کتابه مې په کار دي . د ضمیر په توګه له مبهم ضمیر "نور" او (نا) پېژند "یو" سره راڅرګندېږي ، لکه : "څو" مې واخیستل او "څو نور" به وروسته واخلم . "یوڅو" کسه راغلل "یوڅو نور" هم راځي . "دومره" "هومره" هم همداسې درواخله .

"څو" د مبهم شمېرنوم په توګه د مبهم پوړ شمېرنوم په توګه "یم" هم له ځان سره روستاړی کوي لکه : دا "څویمه" ورځ ده چې زمری نشته ، زوی دې په "څویم" (ټولګي) کې دی ؟

"څو" په هره پاژه کې په شمېرېدونکي جمع اړه لري .

۱۴ . "څومره" : بیا د ارتباطي او استفهامي قید د دندو ترڅنګه کله ناکله د شمېرېدونکي جمع مبهم ضمیر دنده هم پرغاړه اخلي ، لکه: "څومره" مې چې لګېدل ، وامې خیستل . د "هر" مبهم ضمیر په ملتیا ترکیبي مبهم ضمیر رامنځته کوي ، لکه : "هرڅومره" دې چې په کار وي . دومره یا هومره (څه) مې په کار نه دي .

۱۵ . "ډېر" او "لږ" : صفت د مبهم ضمير ، يا په بله وينا ، د نوم په دريځ کې هم هغه مهال راځي چې ترمخه يې اړوند څيزنوم يا ضمير راغلی وي ، لکه : "ډېر" لاړه ، "لږ" ولاړه ؛ "ډېر" ولاړل او نور هم وريسې روان دي . هسې خو د چاپېريال د قرينې له مخې هر صفت بې موصوفه په څيزنوم بدلېږي . لکه: کله کله کشر د مشر ځای نيسي ، دلته لوی او ووړ سره نه توپيرېږي هرګوره ، د نورو خپلوانو ژبو غوندې په پښتو کې هم زياتره جمع صفتونه د موصوفونو دريځ راخپلوي "بهرني" راغلل ، خو "کورني" لا راغلي نه دي .

۱٦ . شمير نومونه که د مخنۍ اشارې يا قرينې له مخې ځانته وکارول شي ، پر مبهمو ضميرونو بدلېږي لکه: يو راغی بيا دوه راغلل ، پسې درې شول ، څلور شول . "يو" د نکرې (ناپېژند) په توګه له هر شمېرنوم او څيزنوم سره مبهم ضميرونه رامنځته کوي ، لکه : يو دوه يو لس ، يوزر ... (افغانۍ مې په کار دي) يا يو شمېر (کلي وران شول) يو موټی (خاوره) يوه برخه (کار) يو اندازه (پيسې ، اوړه ...).

۱۷ . "کوم" پر استفهامي ضمير سربېره يو مبهم ضمير هم دی . د مختاکي او بيا استفهامي قيد په توګه لکه په دې بېلګو کې : کوم غل نيول شوی دی ، دلته کوم کار نشته . "کوم" له څه څوک (چا) سرې ، (نا) پېژند "يو" او يو نيم بل مبهم ضمير سره په ورته معنا ترکيبي مبهم ضميرونه رغوي او له دې سره د ضمير دريځ راخپلوي ، همدا راز له "دا" سره ، لکه : دا کومه ناروا ده .

"کوم" د جنس ، عدد او په جمع بڼه د حالت له مخې ګردانېږي .

پر دغو پورتنيو آرو او څيرمه مبهمو ضميرونو سربېره يو نېم وګړ ـ يا اشاري ضمير (يې ، دا ) هم دغه دريځ راخپلوي چې شتون يې هم دومره اړين نه برېښي :

د انګريزي "it" يا جرمني "es" غوندې د يوې ړومبنۍ څېرمې جملې د يوه مبهم فاعل په توګه داسې راڅرګندېږي :

(لکه چې) ورروي يې .

(دا) ناشونې ده چې نن درشم .

(دا) په څومره نازغمه وي چې کلونه کلونه تا ونه وينم .

(دا) څه تېوکې نه دي چې ځان د زمري په خوله کې ورکړي .

همدارنګه اشتقاقي اشاري ضمير "داسې" هم درواخله ، لکه : (داسې) برېښني چې نن هوا ښه شي ...؛

په ( له کومه راغلې ؟ ) کې له سربل (له) سره يو مکاني استفهامي قيد رامنځته کړی دی او دا چې دلته ځاينوم (لوری ، ځای ...) لوېدلی ، نو همزمان يې د ضمير دنده هم پر غاړه اخېستې ده.

## ۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۱٦ اشتراکي ضميرونه

پښتو له "خپل" څخه پر نورو پاڅو سربېره د يوه ملکي ضمير کار هم اخلي او دا چې د درو واړو اشخاصو لپاره راځي ، نو مشترک ملکي ضمير بلل يې غوره دي ، لکه : شپون خپله رمه پيايي رمه خپل شپانه وپوله ، هرڅوک په خپل کار کې خوښ دي ، ځينې خلک خپل ځان نه پېژني زلمی په خپله خونه کې کار کوي ، خوازک خپل کورته ناوخته ځي ، خوازک له خپل ورور سره ښار ته ولاړ ، بري له خپلو ملګرو څخه مننه وکړه ، بريالی له خپلې خوښې څخه نه اوړي ، ځينې په خپله ګناه نه پوهېږي.

خپل د (نا) پېژند او مبهم صفت په توګه هم کارول کېږي ، لکه : خپله لاسه ، ګله لاسه ، چې بياهم پکې د ملکيت مفهوم پروت دی . په بياځلې ډول لکه په مخني بيت کې : (هو ، هر سړی پيدا دی خپل خپل کار لره کنه) "خپل" د جنس او حالت له مخې بشپړ ګردانېږي ، خو د عدد له مخې نه ، له "ځان" سره انعکاسي ضمير جوړوي ، لکه : خپل ځان مې ژوبل کړ . او له دې سره سره د هماغه ملکيت او پېژندوالي دنده هم ځرګندوي .

## ۷ ـ ۴ ـ ۱ـ ۱۷ ملکي ـ شخصي ضميرونه

چې د غبنتلیو ملکي ضمیرونو او غبنتلیو ځانګړو ، یا اشاري ضمیرونو په یوځای کېدو سره جوړېږي او په دې توګه پر یوه وخت د دوو دوو ضمیرونو دنده پرځای کوي ، له همدغه لامله دوه اړخېزه ګردانېږي او هغه هم د جنس ، عدد حالت او شخص له مخې چې ځانګړي ضمیرونه ورسره یواځې په درېیم شخص اړه لري ، لکه :

۱ ـ ملکي + مفرد ځانګړي ضمیرونه

| شخص/ ګڼه | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | زما دی ـ هغه(ده – هغه )<br>زما دا - .... (دې ، هغې) | زموږ دی ـ هغه(ده ـ هغه)<br>زموږ دا - .... (دې،هغې) |
| ۲ | ستا دی ـ هغه (ده ـ هغه )<br>ستا دا ـ هغه( دې ـ هغې) | ستاسې دی - ..(ده ـ هغه)<br>ستا دا - .. ( دې ـ هغې) |
| ۳ | د ده (هغه) دی ـ هغه ( ده ـ هغه )<br>د دې(هغې) دی ـ .. (ده ـ هغه )<br>د دې (هغې) دا - .. (دې – هغې ) | د دوی(هغوی) دی ـ هغه (ده ـ هغه )<br>د دوی(هغوی) دا - .. (دې ـ هغې) |

۲ ـ ملکي ضمیر + جمع ځانګړي ضمیرونه

| شخص/ ګڼه | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | زما دوی ـ هغوی | زموږ دوی ـ هغوی |
| ۲ | ستا ..... ..... ..... | ستاسې ... .... .... |
| ۳ | د ده .... ..... ....<br>د دې (هغې) ... ..... | د دوی ... .... ...... |

۳ ـ ملکي ضمیرونه + لنډ مفرد اشاري ضمیرونه

| شخص/ ګڼه | مفرد | | جمع | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | زما دغه | دغه ـ دغې | زموږ دغه | دغه ـ دغو |
| ۲ | ستا دغه | .... ـ ...... | ستاسې .... | .... ـ ..... |
| ۳ | د ده (هغه) دغه | ...... ـ ...... | | .... ـ ...... |
| | د دې (هغې) دغه | ...... ـ ...... | د دوی(هغوی) .. | |

۴ ـ ملکي ضميرونه + لر مفرد اشاري ضميرونه

| شخص/ ګڼه | مفرد | | جمع | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | زما هغه | هغه ـ هغې | زموږ هغه | هغه ـ (هغې) |
| ۲ | ستا ..... | .... ـ .... | ستاسې ... | .... ـ ..... |
| ۳ | د ده (هغه) .... | .... ـ .... | د دوی(هغوی) . | ..... ـ ..... |
| | د دې (هغې) هغه | .... ـ .... | | |

۵ ـ ملکي ضميرونه + لالر مفرد اشاري ضميرونه

| شخص/ ګڼه | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | زما هوغه ـ ( هوغه ـ هوغې ) | زموږ ( هوغه ـ هوغه ـ هوغې) |
| ۲ | ستا .... .... ( ..... ... ) | ستاسې ... .... .... ... |
| ۳ | د ده (هغه) ـ ( ... .... .. ) | |
| | د دې (هغې) .. ( .... ... ) | د دوی (هغوی) ... .... ... |

او همداسې ملګري اشاري ضميرونه هم جمع کېږي ، خو يواځې له مغيره جمع حالت سره پايله بدلوي لکه : زما يا زموږ مېلمنو ډوډۍ وخوړه ؛ زما ، يا زموږ هغو هم وخوړه . دا دی د ملکي + ځانګړو ضميرونو د پوره څرګندتيا لپاره څو مثالي جملې وړاندې کوو :

ايمل : زما زوی ناروغ دی .

خوشحال : زما هغه هم ناروغ دی .

ايمل : زما زوی ښوونځي ته ځي .

خوشحال : زما دی لا کوچنی دی .

ايمل : زما وراره ښوونځی ووايه .

خوشحال :زما هغه ، هم ووايه .

ايمل : زما ماما آس واخيست .

خوشحال : زما هغه هم واخيست .

ايمل : زما ورور زلمي ته يو کتاب ورکړ .

خوشحال : : زما ده هم هغه ، ته يو کتاب ورکړ ـ زما هغه ، هم هغه ته يو کتاب ورکړ .

ايمل : زما زامنو ښوونځی پای ته ورساوه .

خوشحال : زما "دغو" يا "هغو" هم پای ته ورساوه .

ايمل : زما کتاب زلمي واخيست .

خوشحال : زما دا زمري واخيست ، زما هغه زمري واخيست .

زما دا هم ده واخيست ، زما هغه هم هغه واخيست .

ايمل : زما ورځنۍ ګټه سل افغانۍ ده .

خوشحال : زما دا دوه سوه افغانۍ ده .

ايمل : د ده کور لرې دی .

خوشحال : د ده دا نږدې دی ، د ده هغه هم لرې دی .

ايمل : د هغه مور ناروغه ده .

خوشحال : د هغه هم ناروغه ده ( د هغې هم ناروغه ده )

ايمل : د دې ورور زما ټولګيوال دی .

خوشحال : ستا دی بيا زما ټولګيوال دی .

ایمل : زما مور و پلار مړه دي .

خوشحال : زما هغه ژوندي دي .

ایمل : زما مور و پلار کوم رسمي کار نه لري .

خوشحال : زما دوی هم کار نه کاوه ( زما هغوی هم کار نه کاوه )

ایمل : زمونږ کلی له ښاره لرې دی .

خوشحال : زمونږ دا هم له ښاره لرې دی .

ایمل : زمونږ هغه دومره لوی نه دی .

خوشحال : زمونږ دا ستاسې له هغه ، څخه ډېر لوی دی .

ایمل : د دویم ټولګي زده کوونکو کتابونه اخیستي نه دي .

خوشحال : د لومړي ټولګي هغو هم اخیستي نه دي .

ایمل : د دریېم ټولګي زده کوونکو خپل کتابونه بېرته ورکړي دي .

خوشحال : د څلورم ټولګي هغوی خپل هغه بېرته ورکړي نه دي ( **٦ : ١١٥ ـ ١٣٨** ) .

د نوم او د نوم د نورو ډلو په څېر بیاهم ، پښتوګرامر او پښتو پښویه د ضمیر او د هغې د ډولونو په اړه ډېر ګډ ټکي لري ، چې تاسې ولوستل . دلته یې توپیرونو ته یوه لنډه کتنه کوو په لاندې ډول :

پښتو ګرامر د خپل میتود له مخې ، شخصي ضمیرونه په دوو ( پیوست او جلا ) ډولونو باندې ویشي دویم ډول ( جلا یا منفصل ضمیرونه ) بیا درې ډولونه لري .

په ګرامر کې ، د شخصي ضمیرونو د دوو ډولونو توپیر داسې شوی ، چې د نورو کلمو سره نښلي یا یوځای کیږي ، پیوست ضمیرونه دي او چې نه نښلي یا له نورو کلمو جلا یا منفصل راځي جلا ضمیرونه بلل شوي دي . دلته داهم د یادولو ده . چې پښتو ګرامر په دې برخه کې ډېر تشریحات ورکوي او د هر ډول د کارونې بېلابېل ځایونه او حالتونه یې په ګوته کړي چې د دې په پرتله د پښتو پښویې څرګندونې لنډې ، خو اغېزناکې دي .

پښتو پښویه ، شخصي ضمیرونه بیا د خپل میتود له مخې ، په دوو ( غښتلیو او کمزوریو ) ویشي. په پښتو ګرامر کې راغلي پیوست ضمیرونه ، له سره په ضمیرونو کې نه شمېري او وګړنې نښې یې بولي. همدارنګه په پښتو ګرامر کې د جلا (منفصل) ضمیرونو دوه ډولونه (لومړی او دویم) د ( غښتلیو او کمزوریو ) ضمیرونو تر سرلیکونو لاندې تشریح کوي ، خو درېیمه ډله ( را ، در او ور ) سمتي اداتي ضمیرونه بولي او په شخصي ضمیرونو کې یې نه شمېري ، د دې ډول ضمیرونو په اړه ، د دواړو ګرامرونو معلومات وړاندې تېر شوي دي .

پښتو ګرامر یوځای د ( شخصي ضمیرونو ) د سرلیک په ترڅ کې د ( ارتباطي حالت ) یادونه کړې او په دې کې یې هغه ضمیرونه په ګوته کړي ، چې په ارتباطي حالت کې راځي ، خو پښتو پښویې په دې اړه څه لیکلي نه دي .

د ضمیرونو بل ډول ملکي او اضافي دي ، چې دا ډول په دواړو ګرامرونو کې تر بحث لاندې نیول شوی ، دواړه نږدې یو ډول څرګندونې لري ، یواځې پښتو پښویې په دوو ډولونو( غښتلي او کمزوري) ویشلي دي ، چې پښتو ګرامر کې بیا دا وېشنه نشته . پښتو پښویې شخصي ضمیرونو ( کمزوزي ضمیرونه) هم په ملکي یا اضافي ضمیرونو کې راوړي ، خو پښتو ګرامر کې بیا دا کار شوی نه دی .

د ضمیرونو له ډولونو څخه بل یې اشاري ضمیرونه دي ، چې داهم په دواړو ګرامرونو کې تر څېړنې لاندې نیول شوي دي . پښتو ګرامر ، د درېیم شخص د ګردان لپاره دوه درجې (نږدې او لرې ) ښیي ، خو پښتو پښویې بیا دا درجې څلور ( لنډ ، لرې ، لالرې او ډېر لرې) ښوولې دي . په همدې بنسټ ، د دې ډول ضمیرونو شمېر هم ، دلته تر پښتوګرامر ډېر دی.

د ضمیرونو د ډولونو په لړ کې بل یې استفهامي ضمیرونه دي ، چې دواړو ګرامرونه یې په اړه بحثونه لري او وړ معلومات یې وړاندې کړي دي . په پښتو ګرامر کې یې شمېر تر پښتو پښویې ډېر دی . پښتو ګرامر ( څو او څومره ) هم استفهامي ضمیرونه بولي ، خو پښتو پښویه بیا دا مبهم ضمیرونه بولي او د همدې سرلیک لاندې یې څېړلي دي .

د ضميرونو له ډولونو څخه بل يې ربطي يا ارتباطي ضميرونه دي . دا ډول ضميرونه هم په دواړو گرامرونو کې څېړل شوي دی . پښتو گرامر يې په اړه لنډ ، خو پښتو پښويې ډېر معلومات وړاندې کړي دي . پښتو پښويې څرگنده کړې چې په پښتو ژبه کې د اروپايي ژبو غوندې ربطي ضميرونه نشته ، خو د نومونو يا نورو ضميرونو په مرسته ، زياتره د ( چې ) ربطي ادات په ملتيا ، ربطي ضميرونه جوړېږي . پښتو پښويې ، د ربطي ضميرونو پرځای کارونې ته ډېره پاملرنه کړې او د ژباړن لپاره يې هم ښه مواد وړاندې کړي دي ، په همدې ترڅ کې يې د ناوړو ژباړو بېلگې هم ښوولې دي .

بل ډول ضميرونه اداتي ضميرونه دي ، چې پښتو گرامر د ( اداتي ضميرونو ) کوم مستقل او خپلواک سرليک نه لري . په پښتو پښويه کې ، د اداتي ضميرونو تر سرليک لاندې راغلي ځينې ډولونه ( ترې ، ځنې ، پرې او پکې ) په پښتو گرامر کې ، د ربطي ضميرونو تر سرليک لاندې څېړل شوي دي.

د ضميرونو بل ډول مبهم يا ناڅرگند دي . د دې ضميرونو په اړه هم دواړه گرامرونه د خپل څېړندود له مخې څېړنه کړې او گڼور معلومات يې وړاندې کړي دي . پښتو گرامر دا ډول ضميرونه په دوو (ساده او مرکب) ډولونو ويشي ، چې دا وېشنه بيا په پښتو پښويه کې نشته. د دواړو گرامرونو په څېړنه کې ستر توپير نشته ، خو پښتو پښويې د هر ډول په تشريح کې گڼور معلومات وړاندې کړي دي.

د ضميرونو د ډولونو په ترڅ کې ، پښتو پښويې ځينې داسې ډولونه هم ښوولي ، چې په پښتو گرامر کې نشته ، لکه ( انعکاسي ، مشترک او ملکي ـ شخصي ضميرونه ) چې په اړه يې څه ويل کېدای هم نه شي ، يواځې د لوستونکو د معلوماتو لپاره وړاندې وليکل شول .

پای

## اخځونه

١ ـ بېنوا ، عبدالروف (١٣٩٣ ل ) اوسني ليکوال . کندهار : صداقت خپرندويه ټولنه .

٢ ـ خوېشکی ، محمد صابر ( ١٣٩٢ ل ) پښتو غږپوهنه او وييپوهنه . جلال اباد : مومند خپرندويه ټولنه.

٣ ـ رښتين ، صديق الله (١٣٨٩ل) پښتو ګرامر . کابل : اقراء خپرندويه مرکز .

۴ ـ رښتين زېور ، زرغونه (١٣٨٢ل) پښتو نحوه . پېښور : د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز.

۵ ـ روهي ، محمد صديق ( ١٣٨۴ ل ) د پښتو ادبياتو تاريخ . پېښور : دانش خپرندويه ټولنه .

٦ ـ زيار ، مجاور احمد (١٣٨۴ل) پښتو پښويه . پېښور : دانش خپرندويه ټولنه .

٧ ـ سنګروال نيازی ، شهسوار ( ١٣٧۵ ل ) د پښتو ادبياتو معاصر تاريخ . پېښور : احمدشاه ابدالي پوهنتون .

٨ ـ نيازی ، رفيع الله (١٣٩١ل) په پښتو کې د ګرامر ليکنې تاريخي بهير .کابل : دانش خپرندويه ټولنه.

٩ ـ هاشمي ، سيد محی الدين (١٣٨٣ل) د پښتو ژبې لنډ ګرامر . پېښور : د اريک د ګرځنده کتابتونونو اداره .

١٠ ـ يون ، محمد اسماعيل ( ١٣٨٧ ل ) استاد زيار د پښتني فرهنګ يو ځلانده ستوری . کابل : يون کولتوري يون .